


شماره مضمون صفحه

Ÿ

الله موږ ددې لپاره پیدا کړي یو چې د هغه عبادت وکوو او موږ ته یې امر کړی دی چې د هغه توحید به منو او د هغه اطاعت به کوو په دنیا چې هر یو ژوندی شی دی دا ټول به یو وخت مړه کیږي هر انسان به یوه ورځ هغه عمل ته ورځي چې ده د ځان لپاره مخکې لیږلی وي که خیر او که شر وي او هرڅوک چې مړ شي هغه پښېمان شي که نېک عمل مړ شي نو پدې پښېمان وي چې ولې مې زیات عمل نه کولو او که بد عمل مړ شي نو پدې پښېمان وي چې ولې مې نېک عمل نه کولو ، ولې مې توبه نه ایسته پاکي ده هغه ذات لره چې دنیا یې پیدا کړیده او یو معلوم وخت یې ورته ټاکلی دی چې تر هغه وخته پورې به دوام کوي او ددې وخت په آخر کې یې ورته داسې یوه ورځ ټاکلې ده چې اوږده به یې پنځوس زره کاله وي او پدې ورځ کې به د ټولو انسانانو سره حساب کوي او هر چا ته به د خپلو عملونو بدل ورکوي که ښه وي او که بد وي هغه ذات هر چا ته ژوند ورکړی دی او کله چې انسان ژوندی وي نو د هغه ذات له علم نه ددې کس د مرګ وخت هم بهر نه دی او پدې باندې هم عالم دی چې دا کس به تر څه وخته پورې ژوند کوي او څرنګه ژوند به کوي او چې هرڅنګه ژوند وکوي د **قیامت** په ورځ به یې د پایلو سره مخامخ کیږي پدې ورځ به هر کس ته خپل حق پوره پوره ورکړل شي دا به هغه ورځ وي چې ټول انسانان به لوڅ سر لوڅې پښې او لوڅ بدنونه پداسې حال کې را پورته کیږي چې هېڅوک به ددې وخت ونلري چې بلې خوا ته وګوري سرونه به یې ښکته اچولي وي او د خپل ځان په غم کې به ډوب وي یوه داسې ورځ ده چې الله ورته د خفګان او حسرت ورځ ویلې ده او موږ یې د هغه د سختو حالتونو څخه ډار کړي یو او په بیا بیا یې موږ ته امر کړی دی چې دې ورځې ته ځان تیار

کړئ

خو الله د خپل حکمت له مخې هغه ورځ له مونږ نه پټه کړېده او الله داسې هم کولی شوای چې مونږ ته يې له مخکې نه د هغې ورځې تاريخ ښودلی وای لکن الله دا له مونږ نه پټه ساتلې ده خو څه نښې يې بندګانو ته ور ښکاره کړې دي چې تر دې وړاندې دوه کتابونه يو د وړو نښو او بل د لويو نښو په تفصيل کې پوره شول اوس هغه وخت راغلی دی چې د **قيامت** په ورځ باندې بحث وکوو او د **قيامت** په ورځ هم چې بحث کوو نو کوښښ به وکوو چې له مختلفو اړخونو څخه يې و څېړو خو مخکې لدې چې بحث ته ور ننوزو لږ به زه خپل لوستونکی دلته ددې لپاره تم کړم چې د **قيامت** لپاره مختلف نومونه دي او که مونږ چا ته د **قيامت** په اړه هېڅ معلومات ورنه کړو صرف يو چا ته د هغه دنومونو پوره تفصيل اود هر نوم د نومولو سبب ور ښکاره کړو چې **قيامت** ته دا نوم ولې اخلي نو د يو لوستونکي لپاره به دا پوره وي چې هغه په هره خبره پوه شي چې په **قيامت** کې به څه کيږي او د **قيامت** ورځ د څه لپاره ده .

## د قيامت نومونه

په قرآن کريم کې او په احاديثو کې په مختلفو ځايونو کې **قيامت** په مختلف نومونو سره ياد کړل شوی دی زه ترېنه يو څه را ټولوم او د علماوو له اقوالو نه به وجه د تسميې (د نوم اېښودلو وجه) هم د نوم نه لاندې کېږدم .

# يــوم الــديــن

يـعنـي د جزاء ورځ او **قيامت** تـه يـوم الـديـن هم ويـل كـيـږي وجه يـې حضرت عبـد الله بـن عبـاس فـرمـايـلـي ده (**يوم الدين: يوم الحساب للخلائق وهو يوم القيامة، يدينهم بأعمالهم؛ إن خيراً فخير، وإن شراً فشر، إلا من عفا عنه**) .

تـرجمة : يـوم الـديـن يـعنـي د مخلـوقـاتـو د حساب ورځ دا د **قيامت** ورځ ده پـدې ورځ بـه دوى تـه د دوى د عملـونـو جزاء ورکـولـه کـيـږي کـه خـيـر وي نـو خيـر او کـه شر وي نـو شر مـګر هغه چې قـابـل د شر وي لـکن الله يـې مـعـاف کـړي .

پـه سورة فـاتـحه کـې دي : **مَلِكِ يَوْمِ الدِّينِ** .[1]

تـرجمة : څښتـن (مـالـک) (د ټـولـو امـورو) د ورځې د جزا دى .

کـلـه چې ابـلـيس حضرت آدم تـه لـه سجدې کـولـو څخه انـکـار وکـولـو الله ورتـه وويـل تـه رټـل شوى يـې او ورتـه يـې وويـل:

**وَإِنَّ عَلَيْكَ اللَّعْنَةَ إِلَى يَوْمِ الدِّينِ** .[2]

تـرجمة : او د جزاء تـر ورځې د پـه تـا بـانـدې لـعنـت وي.

پـه بـل ځـاى کـې الله د حضرت ابـراهيم قـول مـونـږ تـه را نـقـل کـوي هغه فـرمـايـل :

---

[1] **سورة فـاتـحه آيـة ٤**

[2] **سورة الـحجر آيـة 35**

وَالَّذِي أَطْمَعُ أَن يَغْفِرَ لِي خَطِيئَتِي يَوْمَ الدِّينِ.[1]

ترجمة : (ابراهيم وويل) او هغه ذات چې زه تري طمع كوم چې هغه به زما گناه ماته د جزاء په ورځ و بښي .

الله د **قيامت** د يو حالت په اړه فرمايي كله چې دوی له قبرونو څخه را پورته شي وايي به :

وَقَالُوا يَا وَيْلَنَا هَذَا يَوْمُ الدِّينِ (20) .[2]

ترجمة : او وايي به دوی اې زمونږ هلاكته (راشه همدا د وخت دی) دا د جزاء ورځ ده .

كله چې ابليس حضرت آدم ته له سجدې كولو نه انكار وكولو او دليل يې ورته دا وويل چې زه تر هغه نه غوره يم زه د له اور نه او هغه د له خټې نه پيدا كړی دی نو الله ورته وويل : لدې ځای نه بهر شه ته رټل شوی يې او ورته يې وفرمايل:

وَإِنَّ عَلَيْكَ لَعْنَتِي إِلَى يَوْمِ الدِّينِ (78) .[3]

ترجمة : او بېشكه په تا باندې زما لعنت دی د جزاء تر ورځې پورې .

په بل ځای كې الله فرمايي :

يَسْأَلُونَ أَيَّانَ يَوْمُ الدِّينِ (12) يَوْمَ هُمْ عَلَى النَّارِ يُفْتَنُونَ (13)ذُوقُوا فِتْنَتَكُمْ هَذَا الَّذِي كُنتُم بِهِ تَسْتَعْجِلُونَ (14).[1]

---

[1] سورة الشعراء آية ٨٢
[2] سورة الصافات
[3] سورة ص

ترجمة : او دوی پوښتنه کوي چې د جزاء ورځ څه وخت ده؟ دا هغه ورځ ده چې دوی به په اورسره معذب کيږي وځکئ خپل عذاب دا هغه څه دي چې ستاسې ورته عجله (بیړه) وه .

الله فرمایي په **قیامت** کې به هغه کسانو ته چې د **قیامت** په ورځ یې یقین نه وو د زقوم له ونې به خوراک ورکړل شي او د ګرمو اوبو څخه به څښاک ورکړل شي او بیا الله مخکې فرمایي :

هَذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّينِ (56) .[2]

ترجمة : او دا د جزاء په ورځ د دوی مېلمستیا ده .

په قرآن کريم کې په یو ځای کې چې الله د ښو مؤمنانو صفات بیانوي نو هلته د همېشه مانځه خیرات او صدقې ورکولو نه وروسته فرمایي:

وَالَّذِينَ يُصَدِّقُونَ بِيَوْمِ الدِّينِ (26) .[3]

ترجمة : او هغه چې تصدیق کوي (ایمان لري) په ورځې د جزاء .

په آخرت کې چې کله د جهنم د اهل نه پوښتنه وکول شي چې تاسې دوزخ ته څه شي راوستلی؟ دوی به ورته وایي مونږ مونځ نه کولو، غریبانو ته موخوراک نه ورکولو ، خلکو به چې په دین پسې خبرې جوړولې مونږ به هم ورسره لګیا وو هغه خبرې به مو ورسره کولې چې دوی به کولې او بیا به وایي:

---

[1] سورة الذاريات
[2] سورة الواقعة
[3] سورة المعارج

وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّينِ (46). [1]

ترجمة : او مونږ تكذيب كاوه (درواغ مو ګڼله) په ورځ د جزاء .

الله فرمايي چې فاجران به په دوزخ کې وي او دا فاجران به دوزخ ته د جزاء ورځ ور ورسوي الله فرمايي :

يَصْلَوْنَهَا يَوْمَ الدِّينِ (15) وَمَا هُمْ عَنْهَا بِغَائِبِينَ (16) وَمَا أَدْرَاكَ مَا يَوْمُ الدِّينِ (17) ثُمَّ مَا أَدْرَاكَ مَا يَوْمُ الدِّينِ (18) يَوْمَ لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِّنَفْسٍ شَيْئًا وَالْأَمْرُ يَوْمَئِذٍ لِّلَّهِ (19). [2]

ترجمة : دا مجرمين به جحيم ته د جزاء ورځ ور ورسوي يعني د هغې فيصلې نه وروسته به ورشي چې د جزاء په ورځ وشي دوی به له هغه عذابه نه لرې کيږي او ته څه شي خبر کړې چې دا د جزاء ورځ څه شی ده او بيا څه شي خبر کړې چې د جزاء ورځ څه شی ده دا هغه ورځ ده چې هېڅ نفس به د بل نفس لپاره د هېڅ شي اختيار ونلري او پدې ورځ به حکم د الله وي (يوازې).

د هغه کسانو لپاره عذاب دی او هلاکت دی چې هغوی د **قيامت** د ورځې تکذيب کوي او هغې ته يوازې يوه افسانه وايي او ايمان ورباندې نه راوړي الله فرمايي :

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ (10) الَّذِينَ يُكَذِّبُونَ بِيَوْمِ الدِّينِ (11) . [3]

---

[1] سورة المدثر
[2] سورة الانفطار
[3] سورة المطففين

ترجمة : عذاب دی په نن ورځ کې د هغه کسانو لپاره چې هغوی درواغ ګڼونکي دي هغه چې تکذيب کونکي دي هغه کسان چې د جزاء په ورځ تکذيب کوي او د **قيامت** په ورځ ايمان نه راوړي .

## اليوم الآخر

اليوم الآخر هم ورته ويل کيږي امام ابن حجر يې په وجه کې فرمايي : **وأما اليوم الآخر فقيل له ذلك لأنه آخر أيام الدنيا، أو آخر الأزمنة المحدودة.** [1]

ترجمة : او **قيامت** ته يوم الآخر ويل کيږي ځکه دا د دنيا آخره ورځ وي او يا د شمار کړل شويو زمانو آخر دی .

په کوم ځای کې چې په قرآن کريم کې د **قيامت** ورځې ته يوم الآخر ويل شوي دي هلته الله فرمايي : **وَمِنَ النَّاسِ مَن يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الآخِرِ وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ(٨)** [2] .

ترجمة : او ځينی له خلقو هغه څوک دي چې وايی ايمان راوړی دی مونږ په الله او په ورځ وروستی (چې **قيامت** او د جزا وخت دی) . حال دا چې نه دي دوی مؤمنان .

---

1 **فتح الباري**
2 **سورة البقرة**

په بل ځای کې الله فرمايي : **لَيْسَ الْبِرَّ أَن تُوَلُّواْ وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ(١٧٧)** .[1]

ترجمة : نه ده نيكي (يواځې دا كار) چې وګرځوئ مخونه خپل (په لمانځه كې) طرف د مشرق يا مغرب ته ولېكن غوره نيكي د هغه چا ده چې ايمان ئې راوړى وي په پاک الله او (ايمان ئې راوړى وي په) ورځې آخرې .

په بل ځای کې الله فرمايي :

**وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ اجْعَلْ هَذَا بَلَدًا آمِنًا وَارْزُقْ أَهْلَهُ مِنَ الثَّمَرَاتِ مَنْ آمَنَ مِنْهُم بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ قَالَ وَمَن كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُ قَلِيلاً ثُمَّ أَضْطَرُّهُ إِلَى عَذَابِ النَّارِ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ (126)** .[2]

ترجمة: او كله چې وويل ابراهيم اى زما ربه وګرځوه دا ښار (مكه) په امن كې او په دوى كې چې چا په الله او د آخرت په ورځ ايمان راوړو هغوى ته مېوې وركړه الله ورته وويل او هغه چې ايمان يې رانه وړو هغوى ته به لږ مهلت وركړم او بيا به يې مجبوركړم د دوزخ اورته ډېر بدځاى د ورتلو دى .

په بل ځای کې الله فرمايي :

**لَّيْسَ الْبِرَّ أَن تُوَلُّواْ وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَـكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ.** [3]

---

[1] سورة البقرة
[2] سورة البقرة
[3] سورة البقرة آية ١٧٧

ترجمة : نيكي دا نه ده چې په مانځه كې خپل مخونه يا مشرق او يا مغرب لور ته وګرځوئ بلكه نيكي داده چې څوک په الله او په ورځ آخرې باندې ايمان راوړي .

په بل ځای كې الله فرمايي :

وَلاَ يَحِلُّ لَهُنَّ أَن يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ إِن كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ .[1]

ترجمة : او ښځو ته دا نه دي روا چې هغوی هغه څه پټ كړي چې الله د دوی په رِحمونو كې پيدا كړي دي كه دوی چېرته په الله او په ورځ آخرې باندې ايمان لري .

په بل ځای كې الله فرمايي :

ذَلِكَ يُوعَظُ بِهِ مَن كَانَ مِنكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ ذَلِكُمْ أَزْكَى لَكُمْ وَأَطْهَرُ وَاللّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ (232) .2

ترجمة : دا (حكم ) پند وركاوه كيږي په ده سره هغه چا ته چې وي دی له تاسې نه چې ايمان لري په الله او ورځې آخرې باندې دا ډېر غوره دی تاسې (او دوی) ته او ښه پاكيزه دی او الله عالم دی (پر هر شي) او تاسې نه پوهېږئ (په خپل خير هم ) .

په بل ځای كې الله فرمايي :

[1] سورة البقرة آية ۲۲۸
[2] سورة البقرة

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تُبْطِلُواْ صَدَقَاتِكُم بِالْمَنِّ وَالأذَى كَالَّذِي يُنفِقُ مَالَهُ رِئَاء النَّاسِ وَلاَ يُؤْمِنُ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ(٢٦٤). [1]

ترجمة : اي مؤمنانو مه باطلوئ خپلې صدقې په احسان او ضرر رسولوسره لكه هغه كس چې خيرات كوي مال خپل خلكو ته د ځان د ورښكاره كولو لپاره او نه په الله ايمان لري نه په ورځ آخره باندې .

الله د اهل كتابو په اړه فرمايي چې دوى هم ټول يو شان نه دي ځينې پكې هم شته چې هغوى داسې دي :

يُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَأُوْلَئِكَ مِنَ الصَّالِحِينَ (114).[2]

ترجمة : په الله او په ورځ آخره باندې ايمان راوړي په نيكو باندې امر كوي او له بدو څخه منع كوي په نېكو كارونو كې بيړه كوي او هغوى له نېكانو څخه دي .

الله فرمايي چې په آخرت كې د كافرانو لپاره دردناك عذاب تيار كړل شوى دى او د هغه كسانو لپاره :

وَالَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ رِئَاء النَّاسِ وَلاَ يُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَلاَ بِالْيَوْمِ الآخِرِ وَمَن يَكُنِ الشَّيْطَانُ لَهُ قَرِينًا فَسَاء قِرِينًا (38) وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ آمَنُواْ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَأَنفَقُواْ مِمَّا رَزَقَهُمُ اللّهُ وَكَانَ اللّهُ بِهِم عَلِيمًا (39).[3]

---

[1] سورة البقرة
[2] سورة آل عمران
[3] سورة النساء

ترجمة : هغه کسان چې مصرف کوي خپل مالونهددې لپاره چې خلکو ته يې ور ښکاره کړي او هغوی ايمان نه راوړي په الله او په ورځ آخره باندې د چا چې شيطان ملګری شي دا ډېر بد ملګری دی او دوی ته يې څه تاوان وو که دوی په الله او په ورځ آخره باندې ايمان راوړی وی او له هغه مال نه چې الله دوی ته ورکړی دی دوی مصرف کولی او الله د دوی په کار ښه پوه دی .

الله فرمايي :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ أَطِيعُواْ اللّهَ وَأَطِيعُواْ الرَّسُولَ وَأُوْلِي الأَمْرِ مِنكُمْ فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ ذَلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلاً (59). [1]

ترجمة : اې هغه کسانو چې ايمان مو راوړی دی (ای مؤمنانو!) د الله او د هغه د رسول او د هغه چا اطاعت وکړئ چې په تاسې کې د امرخاوندان وي که چېرته ستاسې په کوم کار کې تنازع او لانجه شوه نو په هغه کې الله او د هغه رسول ته رجوع وکوئ که چېرته تاسې رښتيا په الله او په ورځ آخره باندې ايمان لرئ دا ښه طريقه ده او د آخري نتيجې په اعتبار هم دا غوره کار دی .

په بل ځای کې الله فرمايي :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ آمِنُواْ بِاللّهِ وَرَسُولِهِ وَالْكِتَابِ الَّذِي نَزَّلَ عَلَى رَسُولِهِ وَالْكِتَابِ الَّذِيَ أَنزَلَ مِن قَبْلُ وَمَن يَكْفُرْ بِاللّهِ وَمَلاَئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلاَلاً بَعِيدًا (136). [2]

---

[1] سورة النساء
[2] سورة النساء

ترجمة : اې هغه کسانو چې تاسې ایمان راوړی دی (اې مؤمنانو!) ایمان راوړئ (ثابت او محکم پاتې شئ په ایمان کې) په الله او د هغه په رسولانو او د هغه په هغه کتاب چې په خپل رسول یې نازل کړی دی او هغه کتاب چې مخکې یې نازل کړی دی او هغه څوک چې په الله او ملائکو د هغه او کتابونو د هغه او رسولانو د هغه او په ورځ آخره باندې کافر شي دا ډېره لرې ګمراهي ده (چې د سمې لاې نه ډېره لرې ده) .

الله فرمايي په يهودو کې ځينې ظالمان وو د هغوی د ظلم له امله ځينې پاک شيان مونږ دوی ته حرام کړي وو خو ځينې يې بيا د ښه علم خاوندان دي او ښه ايمان يې درلود الله فرمايي :

**لَّكِنِ الرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُونَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ وَالْمُقِيمِينَ الصَّلاَةَ وَالْمُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَالْمُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ أُوْلَئِكَ سَنُؤْتِيهِمْ أَجْرًا عَظِيمًا (162).** [1]

ترجمة : ليکن هغه (کسان) چې پاخه دي په علم کې له دوی څنې او ايمان لرونکي ايمان لري په هغه (کتاب) چې نازل کړی شوی دی تاته او (ايمان لري) پر تولو (انبياوو) سم قائم کوونکي د لمانځه او هغه کسان چې ورکوونکي دي زکات لره (يا) او (صفت کوو د) سم قائم کوونکو د لمانځه او هغه کسان چې ورکوونکي دي زکات لره او ايمان راوړوونکي په الله او په ورځې آخرې (چې **قيامت** دی) دغه (کسان چې د صحيح ايمان او صالح عمل لرونکي دي) ژر به ورکړو مونږ دوی ته ثواب ډېر لوی (جنت ، رضا ، او لقاء)

په بل ځای کې الله فرمايي :

---

[1] **سورة النساء**

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُواْ وَالَّذِينَ هَادُواْ وَالصَّابِؤُونَ وَالنَّصَارَى مَنْ آمَنَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وعَمِلَ صَالِحًا فَلاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ (69). [1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی (تش په ژبو) او هغه کسان چې يهوديان دي او (فرقه د) ترسايانو او نصرانيانو (د دوی حکم هم داسې دی) هرڅوک چې ايمان راوړي په الله او په ورځ آخره (چې ورځ د **قيامت** ده د زړه په صدق سره) او عمل وکړي نيک (عمل) نو نشته (هېڅ قسم) وېره پر دوی باندې او نه به دوی (هېڅکله) خفه کيږي (د اجر په نقصان سره) .

الله فرمايي جوماتونه جوړول د هر چا کار نه دی دا مشرکين چې په خپل ځان باندې د کفر ګواهان هم دي دوی جوماتونه نه جوړوي بلکه جوماتونه چې جوړوي هغه د خاصو صفاتو مالکان وي الله فرمايي :

إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللّهِ مَنْ آمَنَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلاَةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلاَّ اللّهَ فَعَسَى أُوْلَئِكَ أَن يَكُونُواْ مِنَ الْمُهْتَدِينَ (18) أَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ الْحَاجِّ وَعِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ كَمَنْ آمَنَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَجَاهَدَ فِي سَبِيلِ اللّهِ لاَ يَسْتَوُونَ عِندَ اللّهِ وَاللّهُ لاَ يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ (19) [2]

ترجمة : بېشکه هم دا خبره ده چې ودانوي (په عبادت ناسته ولاړه په تعمير سره) جوماتونه د الله هغه څوک چې ايمان يې راوړی وي په الله او په ورځې آخرې (د **قيامت**) او قائموي (سم اداء کوي سره له ټولو حقونو) لمونځ او ورکوي زکواة او نه ويريږي (په ديني کارونو کې له هېچا)

---

[1] سورة المائدة
[2] سورة التوبة

مګر له الله څخه نو امید دی چې دغه کسان به وي له سمې لارې موندونکو څخنې آیا ګڼلي (ګرځولي) دي تاسې اوبه ورکول حاجیانو ته او ودانول د مسجد حرام په مثل (د ایمان) د هغه چا چې ایمان (او یقین) لري په الله او (په) ورځې آخرې (د **قیامت**) او جهاد ئې کړی وي په لاره د الله کې نه دي برابر دوی په نزد د الله او الله نه ښیي سمه صافه لاره قوم ظالمانو ته .

څوک چې په الله او د آخرت په ورځ ایمان نه لري الله مسلمانانو ته امر کوي چې د هغوی سره و جنګېږئ الله فرمایي :

**قَاتِلُواْ الَّذِينَ لاَ يُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَلاَ بِالْيَوْمِ الآخِرِ وَلاَ يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللّهُ وَرَسُولُهُ وَلاَ يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُواْ الْكِتَابَ حَتَّى يُعْطُواْ الْجِزْيَةَ عَن يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ (29).** [1]

ترجمة : و جنګېږئ تاسې له هغو کسانو سره چې نه راوړي ایمان پر الله او نه په ورځې آخرې باندې (ځکه چې په پاک محمد ئې ایمان نه دی راوړی) او نه حرام ګڼي دوی هغه چې حرام کړي دي الله (په قرآن کې) او رسول د دغه (الله په حدیثونو کې) او نه قبلوي دوی دین حق (د اسلام دغه مذکورین) له هغو کسانو نه (دي) چې ورکړل شوی دی دوی ته کتاب (جنګ ورسره وکوئ) تر هغه پورې چې ورکړي دوی جزیه له (خپله) لاسه حال دا چې دوی ذلیل وي.

الله رسول الله ﷺ ته فرمایي چې کله د جهاد اواز وشي یوازې منافقین به لتا نه د پاتې کېدو اجازه غواړي او هغه کسان چې په الله او د آخرت

[1] سورة التوبة

په ورځې (**قيامت**) يې ايمان راوړى وي هغوى لتا نه د پاتې کېدو اجازه نه غواړي الله فرمايي :

**لاَ يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ أَن يُجَاهِدُواْ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ وَاللّهُ عَلِيمٌ بِالْمُتَّقِينَ (44) إِنَّمَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ لاَ يُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَارْتَابَتْ قُلُوبُهُمْ فَهُمْ فِي رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُونَ (45).** [1]

ترجمة : نه غواړي اجازه له تا نه هغه کسان چې مؤمنان دي په الله او په ورځې آخرې (د **قيامت** په پته او ښکاره په وروسته پاتې کېدلو له دې نه) چې جهاد وکړي دوى په مالونو خپلو او ځانونو خپلو سره او الله ښه عالم دى په پرهېزګارانو (ځان ساتونکو له بېرته پاتې کېدو څخه) بېشکه همدا خبره ده چې اجازه غواړي له تا نه (اى محمده د تخلف) هغه کسان چې ايمان نه لري (په پته) په الله او په ورځې آخرې باندې (چې **قيامت** دى) او چې شکمن دي زړونه د دوى (د دين په حقانيت کې) نو دوى په شک خپل کې سرګردانه (او متحيره) دي.

الله رسول الله ﷺ ته فرمايي چې په باندچيانو او صحرايي خلکو کې ځينې د اسې خلک هم شته چې د الله په لاره کې څه شى مصرف کړي هغه تاوان شمېري او ددې انتظار کوي چې په تاسې باندې د زمانې حالات بدل شي او کېداى شي تاسې به ختم شئ خو ځينې پکې د ښه نيت لرونکي او ايمان لرونکي هم شته چې په الله او په ورځ آخرې باندې ايمان لري الله فرمايي :

[1] سورة التوبة

**وَمِنَ الأَعْرَابِ مَن يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَيَتَّخِذُ مَا يُنفِقُ قُرُبَاتٍ عِندَ اللَّهِ وَصَلَوَاتِ الرَّسُولِ أَلا إِنَّهَا قُرْبَةٌ لَّهُمْ سَيُدْخِلُهُمُ اللَّهُ فِي رَحْمَتِهِ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ (99).** [1]

ترجمة : او ځينې له (صحرائي) اعرابو څخه هغه دي چې ايمان لرونكي دي په الله او په ورځې آخرې (چې **قيامت** دی) او نيسي (ګڼي او شميري) هغه شی چې لګوي (يې په لاره د الله كې (اسباب) د نږدي والي په نزد د الله او (سبب د) دعاوو د رسول د الله خبر دار شئ چې دغه (نفقات يا صلوة سبب د) نږدې والی دی دوی ته ژر به داخل كړي دوی الله په رحمت خپل كې بېشكه چې الله ښه مغفرت كونكی (د متصدقانو) ډېر مهربان دی ( پر متقربانو)

الله د زناء د حد په اړه فرمايي كه تاسې چېرته په الله او په ورځ آخرې ايمان لرئ نو له دوی سره نرمي مه كوئ او حد وربانديې په سمه توګه جاري او عملي كړئ الله فرمايي :

**الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِئَةَ جَلْدَةٍ وَلَا تَأْخُذْكُم بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَائِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ (2).** [2]

ترجمة : هغه ښځه چې زنا ئې كړې وي او هغه سړی چې زنا ئې كړې وي (او پر دوی باندې زناء ثابته شي په اقرار يا ګواهي) پس وهئ تاسو اې (قاضيانو او حاكمانو) هر يو له دغو دواړو سل دُرې او نه د نيسي تاسو لره په دغو (دواړو زنا كارانو) زړه سوی (او مهرباني) په (انفاذ د) حكم د الله كې كه يئ تاسې چې ټينګ يقين لرئ پر

---

[1] سورة التوبة
[2] سورة النور

الله او په ورځې آخې (د**قيامت**) ، او حاضر دې شي عذاب کولو د دوی دواړو ته يوه طائفه ډله له مؤمنانو څخه (چې فضاحت ئې زيات شي) .

الله مونږ ته د حضرت شعيب واقعه بيانوي او فرمايي چې هغه خپل قوم ته ويل د الله عبادت وکوئ او د هغه نه اميد وساتئ چې هغه تاسې ته په ورځ آخرې (د **قيامت**) کې ثواب درکړي الله فرمايي :

وَإِلَى مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا فَقَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَارْجُوا الْيَوْمَ الْآخِرَ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ (36) [1]

ترجمة : او (لېږلی وو اهل د) مدين ته ورور د دوی شعيب پس وويل (دغه شعيب) اې قومه زما عبادت کوئ (يوازې) د الله او اميد ولرئ (د ثواب) د ورځې وروستنئ (او وويريږئ له عذابه ئې) يعني د آخرت له طرفه مه غافليږئ او د واحد الله بې له شريکه عبادت وکوئ او مه ګرځئ تاسې په زمکه (د مدين) کې په دغه حال کې چې فساد کوونکي يئ.

الله فرمايي هغه کسان چې له الله نه د رحمت اميد لري او د **قيامت** په ورځ د ثواب اميد لري د هغوی لپاره په رسول الله کې ښه او غوره اقتداء ده الله فرمايي :

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا (21). [2]

---

[1] سورة العنكبوت
[2] سورة الاحزاب

ترجمة : خامخا په تحقيق دي تاسې ته (اې وېرېدونکيو) په (کار د) رسول الله کې اقتداء غوره نېکه د پاره د هغه چا چې وي دی چې ډاريږي د الله (او اميد لري د رضاء او د لقاء ئې) او (د ثواب د نعمتونو د) ورځې وروستنۍ (د **قيامت**) او يادوي الله ډېر (هم په خوله هم په زړه هم په راحت او هم په زحمت کې) .

الله فرمايي هغه کسان چې په الله او په ورځې آخرې (د **قيامت**) باندې ايمان راوړي هغه کسان به ته داسې پيدا نه کړې چې هغوی د کفارو سره دوستي کوي الله فرمايي :

**لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءهُمْ أَوْ أَبْنَاءهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ أُوْلَئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ أُوْلَئِكَ حِزْبُ اللَّهِ أَلَا إِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْمُفْلِحُونَ (22)** .[1]

ترجمة : او نه به مومې ته (ای محمده او نه شائيرې چې بيا مومې) يو قوم چې ايمان ئې راوړی وي په الله او په ورځې آخرې (د **قيامت**) چې دوستي به کوي دوی له هغه چا سره چې مخالفت کوي له الله او له رسوله د دغه (الله ) نه اگر که وي (دغه مخالفين) پلرونه د دوی او زامن د دوی يا ورونه د دوی يا (نور قبيله) خپلوان د دوی دغه (قوم چې له اعداء الله سره دوستي نه کوي) ليکلی دی (الله ) په زړونو د دوی کې ايمان او قوي کړي ئې دي په غيبي فيض مدد له نزده خپله څخه (او قوي کړي دي يعني قوت ورکړی دی

---

[1] سورة المجادلة

ﷲ دوی لره په روح رحمت نصرت خپل سره یا په نور رڼا د زړه یا په قرآن عظیم الشان سره)

ﷲ یو ځل بیا فرمایي چې هغه کسان چې له ﷲ نه د رحمت امید لري او د **قیامت** په ورځ د ثواب امید لري د هغوی لپاره په رسول ﷲ کې ښه او غوره اقتداء ده ﷲ فرمایي:

**لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيهِمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَمَن يَتَوَلَّ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ (6).** [1]

ترجمة : خامخا په تحقیق ده تاسې لره (اې مؤمنانو) په دغو (خبرو د ابراهیم او اتباعو دده) کې طریقه حسنه ښه (چې اقتداء پسې کوئ او د اقتداء ده) هغه چا لره چې وي چې امید لري (د ثواب) د ﷲ او ویرېږي د (جزاء د) ورځې آخرې (د **قیامت**) او هر هغه څوک چې مخ وګرځوي (له احکامو د ﷲ ) نو بېشکه ﷲ همغه دی غني بې پروا ښه ستایلی شوی (په محامدو) .

ﷲ فرمایي :

**فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ فَارِقُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنكُمْ وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلَّهِ ذَٰلِكُمْ يُوعَظُ بِهِ مَن كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا (2).** [2]

ترجمة : بیا نو کله چې ورسیږي دغه (ښځې) نیتې خپلې ته نو وساتئ (تاسې اې میړو) دوی په معروف نیکي ښه شان سره یا جلا (جدا) شئ تاسې له دوی څخه په معروف نیکي ښه شان سره او شاهدان نیسئ تاسې (په دغه رجوع باندې) دوه

---

[1] سورة الممتحنة
[2] سورة الطلاق

خاوندان د عدل له تاسې څخه او ښه اداء کړئ تاسې شاهدي (اې شاهدانو په وقت د حاجت کې د) پاره د (ثواب او رضاء د) الله دا (ساتنه په نيکي سره) نصيحت کاوه شي په دې سره هغه چا ته چې وي چې ايمان ئې راوړی وي په الله او په ورځې وروستۍ (د **قيامت**) باندې او هغه څوک چې ويريږي له الله څان ساتي له معاصيو وبه ګرځوي ده ته يو ځای د وتلو (له دنيوي او آخروي غمونو نه) .

# يــوم الـقـيـامـة

د **قيامت** ورځ ورتــه ويـل كـيـږي قــيـام دريـدلـېو تــه ويـل كـيـږي او دېـتـه د دريـدلــو ورځ ځكه ويـل كـيـږي چې پــدې كې د دريــو شيـانــو قــيـام كـيـږي .

**١. خلك لــه قــبـرونـو څخه را پـورتـه كـيـږي لـكـه ﷲ چې فـرمـايــي :**
لِيَوْمٍ عَظِيمٍ يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ . [1]
**٢. پـدې ورځ بـه ګـواهـان قـائـم كـيـږي پـيـغـمـبـران او نـور ګـواهـان بـه ګـواهـي وركـوي ﷲ فـرمـايـي :** إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُومُ الأَشْهَادُ . [2]
**٣. پـدې ورځ كې بـه عدل قـائـمـيـږي لـكـه ﷲ چې فـرمـايــي :**
وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ . [3]

ﷲ بــنـي اسـرائـيـلـو تــه فــرمــايــي چې لـتـاسې نــه مــونـږ عـهـد واخـيـسـت چې تــاسې بــه ويـنـې نــه تـويـوئ او خـپـل نـفـسونـه بـه لـه خـپـلـو كـورونـو څخه نـه وبـاسئ پـدې بـانـدې تــاسې تـعـهـد وكـولـو ددېـنـه وروسـتـه بـيـا تـاسې هغه تـعـهـد مـات كـړو ﷲ پــدې اړه فـرمـايــي :

ثُمَّ أَنتُمْ هَؤُلاء تَقْتُلُونَ أَنفُسَكُمْ وَتُخْرِجُونَ فَرِيقاً مِّنكُم مِّن دِيَارِهِمْ تَظَاهَرُونَ عَلَيْهِم بِالإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَإِن يَأتُوكُمْ أُسَارَى تُفَادُوهُمْ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ إِخْرَاجُهُمْ أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ فَمَا

---

[1] **سورة الـمطففـين آيـة ٥-٦**
[2] **سورة غـافـر آيـة ٥١**
[3] سورة الانـبـيـاء آيـة ٤٧

**جَزَاء مَن يَفْعَلُ ذَلِكَ مِنكُمْ إِلاَّ خِزْيٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يُرَدُّونَ إِلَى أَشَدِّ الْعَذَابِ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ (85)** .[1]

ترجمة : پس (له دي عهده) تاسې هغه کسان يئ چې وژنئ ځانونه خپل (يو بل سره يا وژنئ غريبان اقربا خپل) او باسئ تاسې يوه ډله خپله (چې مغلوبه شي) له کورو د دوی ځخه مرسته (مدد) کوئ يو له بل سره پر دوی باندې په ګناه او ظلم او که راشي دوی تاسې ته بنديان نو فديه ورکوئ تاسې د دوی په ځای شان دا چې حرام کړل شوي دي پر تاسې ايستل د هغو ايا پس (منئ او) ايمان راوړئ تاسې پر ځينو (احکامو د) کتاب (چې فديه ده) او کافران کېږئ په ځينو نورو (احکامو د کتاب چې بې ګناه وژنئ په ګناه سره مرسته کوئ د دوی مغلوبان له وطنه شړئ) پس نه ده سزا د هغه چا چې کوي دا (کارونه) له تاسې ځخه مګر خو رسوايي ده په ژوند د دنيا کې او په ورځ د **قيامت** کې ګرځول کيږي دوی ډېر سخت عذاب د (دوزخ) ته او نه دی الله غافل له هغه ځه چې کوئ يې تاسې.

الله فرمايي په دنيا کې خو يهود وايي چې نصارا هېڅ شی هم نه دي او نصارا وايي چې يهود هېڅ هم نه دي همدارنګه هغه کسان چې علم نلري هغوی هم همداسې خبرې کوي خو د **قيامت** په ورځ به الله د دوی په مينځ کې فيصله کوي .

**وَقَالَتِ الْيَهُودُ لَيْسَتِ النَّصَارَى عَلَىَ شَيْءٍ وَقَالَتِ النَّصَارَى لَيْسَتِ الْيَهُودُ عَلَى شَيْءٍ وَهُمْ يَتْلُونَ الْكِتَابَ كَذَلِكَ قَالَ الَّذِينَ لاَ يَعْلَمُونَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ فَاللّهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُواْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ (113)**.[2]

---

[1] سورة البقرة
[2] سورة البقرة

ترجمة : او وايي يهودان چې نه دي نصرانيان په هېڅ شي (له حق دين څخه) او وايي نصرانيان چې نه دي يهودان په هېڅ شي (له حق دين څخه) حال دا چې دغه (يهودان او نصرانيان) لولي دوی کتاب (د الله ) هم دا رنگه ويل هغو کسانو چې نه پوهېدل (لکه مجوسيان او مشرکان) په شان د ويلو د دغو (کتابيانو) نو الله به حکم وکړي په مينځ د دوی کې په ورځ د **قيامت** په هغه شي کې چې وو دوی چې په هغه کې به يې اختلاف (او جگړې) کولې.

هغه کسان چې د الله د احکامو په بدل کې له خلکو نه پيسې اخلي له دوی سره به الله د **قيامت** په ورځ کې خبرې نه کوي (ډېر به ورته غصه وي) الله فرمايي :

**إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلَ اللّهُ مِنَ الْكِتَابِ وَيَشْتَرُونَ بِهِ ثَمَنًا قَلِيلاً أُولَئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ إِلاَّ النَّارَ وَلاَ يُكَلِّمُهُمُ اللّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلاَ يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (174).** [1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې پټوي (دوی) هغه څه چې نازل کړي دي الله چې کتاب دی او اخلي په دې (د پټولو په عوض سره) قېمت لږ نو دغه کسان (چې د حق پټوونکي دي) نه خوري (نه اچوي دوی) په ګېډو خپلو کې مګر اور (د دوزخ د اور موجبات) او نه به خبرې وکړي له دوی سره الله په ورځ د **قيامت** کې (په خوښۍ سره) او نه به پاک کړي (الله ) دوی (له کفره) او د دوی لپاره عذاب دردناک دی.

---

[1] سورة البقرة

الله فرمايي هغه کسان چې کافران دي هغوی ته دنيا ډېره ښائسته ښکاره کيږي او په هغه کسانو پورې ټوقې کوي چې هغوی مؤمنان دي او د **قيامت** په ورځ به په دوی باندې لوړ وي الله فرمايي :

**زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُواْ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا وَيَسْخَرُونَ مِنَ الَّذِينَ آمَنُواْ وَالَّذِينَ اتَّقَواْ فَوْقَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَاللّهُ يَرْزُقُ مَن يَشَاء بِغَيْرِ حِسَابٍ (212)** .[1]ترجمة : ښائسته کړل شوې ده هغو کسانو لره چې کافران شوي دي دغه ژوندون لېږ خسيس او مسخرې کوي دوی پر هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (په سبب د فقر د دوی او غنا خپلې) او هغه کسان چې ځې ساتلي دي (ځانونه له شرکه) د پاسه د دوی (يعني کفارو) به وي په ورځې د **قيامت** کې او الله روزي ورکوي هغه چا لره چې اراده وکړي بې له حسابه .

الله فرمايي :

**إِذْ قَالَ اللّهُ يَا عِيسَى إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُواْ وَجَاعِلُ الَّذِينَ اتَّبَعُوكَ فَوْقَ الَّذِينَ كَفَرُواْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ (55)** [2]

ترجمة : (ياد کړه اې محمده!) هغه وخت چې وويل الله اې عيسى بېشکه زه اخيستونکی يم ستا (له زمکې) او پورته بيوونکی يم ستا طرف زما ته او پاکوونکی (لرې کوونکی) يم ستا له هغو کسانو څخه چې کافران (منکران) شوي دي او ګرځوونکی يم د هغو کسانو چې متابعت ئې کړی دی ستا د پاسه د هغو کسانو چې کافران (منکران) شوي دي تر ورځې د **قيامت**ه پورې بيا (خاص) طرف زما ته

[1] سورة البقرة

[2] **سورة آل عمران**

دې راتګ ستاسې او زه به حکم وکړم په مینځ ستاسې کې په هغه شي کې چې وئ تاسې چې په هغه کې اختلاف به مو کاوه.

الله فرمايي :

إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلاً أُوْلَئِكَ لاَ خَلاَقَ لَهُمْ فِي الآخِرَةِ وَلاَ يُكَلِّمُهُمُ اللّهُ وَلاَ يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلاَ يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (77). [1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې بدل اخلي دوی په عهد د الله باندې (چې ايمان په نبي او اداء د امانت ده) او په (دروغو) قسمونو خپلو باندې (ايمان په محمد او نصرت) قېمت لږ (دنيوي د هغه د نه منلو په عوض) دغه کسان نشته هېڅ برخه د دوی د پاره په آخرت کې او نه به خبرې وکړي له دوی سره الله (په خوښي) او نه به وګوري دوی ته (الله په رحم سره) په ورځې د **قيامت** کې او نه به پاک کړي دوی (الله له کفره) او (شته) دوی ته عذاب دردناک (په سبب د دغو بدو افعالو د دوی) .

الله فرمايي :

وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَغُلَّ وَمَن يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ تُوَفَّى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لاَ يُظْلَمُونَ (161) . [2]

ترجمة : او نه ښايي هېڅ نبي ته چې څه شی پټ کړي او هرڅوک چې څه شی پټوي نو را به شي (دا پټوونکی) په هغه سره چې ده پټ کړي وي په ورځې د **قيامت** کې بيا به پوره ورکړل شي هر نفس ته

[1] سورة آل عمران
[2] سورة آل عمران

(جزا د) هغه عمل چې کړي وي ده او پر دوی به ظلم ونه کړل شي (په تزئيد د عذاب يا تنقيص د ثواب کې) .

الله فرمايي :

وَلاَ يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللّهُ مِن فَضْلِهِ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُواْ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلِلّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ وَاللّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ (180).[1]

ترجمة : او ګمان د نه کوي له سره هغه کسان چې بخيلي کوي دوی به هغه شي چې ورکړي دي دوی ته الله له فضله خپله چې دا بخل خير دی (غوره دی) دوی ته بلکه دا (بخل ډير بد) شر دی دوی ته ژر به په غاړه کې ورته امېل کړل شي هغه چې بخيلي کړې ده دوی په هغه شي کې په ورځې د **قيامت** او خاص الله لره دی ميراث د آسمانونو او د زمکې (د دغو دواړو د اهل له فنا څخه به وروسته هر څه هم هغه حقيقي وارث او مالک ته پاتې کيږي) او الله پر هغو (کارونو هم) چې کوئ (ئې) تاسې ښه خبردار دی (نو د ټولو جزا به درکړي) .

الله فرمايي په دنيا کې چې هر ژوندی نفس دی دا به مړ کيږي بيا به د **قيامت** په ورځ تاسې ته ستاسې اجرونه پوره درکول کيږي الله فرمايي :

كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَمَن زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ وَما الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلاَّ مَتَاعُ الْغُرُورِ (185) .[2]

---

[1] سورة آل عمران
[2] سورة آل عمران

ترجمة : هر يو نفس څکونکی (د خوند) د مرګ دی او بېشکه هم دا خبره ده چې پوره به درکړل شي تاسې ته اجرونه ستاسې په ورځ د **قيامت** کې نو هر څوک چې لرې کړل شو له اوره (د دوزخ) او داخل کړل شو جنت ته نو په تحقيق مراد يې وموند (بريالی شو) او نه دی ژوندون لږ خسيس مګر پنګه د غولېدلو (چې فايده يې لږ او فنا يې زر ده) .

الله د اولی الالباب (خاوندانو د عقلونو) صفت کوي او بيا فرمايي چې هغوی په خپله دعاء کې داسې وايي :

**رَبَّنَا وَآتِنَا مَا وَعَدتَّنَا عَلَى رُسُلِكَ وَلاَ تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّكَ لاَ تُخْلِفُ الْمِيعَادَ (194).** [1]

ترجمة : اې ربه زمونږه او راکړه مونږ لره هغه چې وعده کړې ده تا له مونږ سره په (ژبو د) رسولانو خپلو او مه رسوا کوه مونږ په ورځې د **قيامت** کې بېشکه ته (اې ربه) نه کوې مخالفت له وعدې (خپلې) نه .

الله فرمايي هغه به مونږ ټول د **قيامت** په ورځ سره راټولوي :

**اللّهُ لا إِلَهَ إِلاَّ هُوَ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ لاَ رَيْبَ فِيهِ وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللّهِ حَدِيثًا (87).** [2]

ترجمة : الله نشته هېڅ لائق د عبادت مګر يوازې هم دی دی خامخا را جمع به کړي تاسې ورځې د **قيامت** ته چې نشته هېڅ شک په هغې (ورځې يا په

---

[1] سورة آل عمران
[2] سورة النساء

جمع) کې او څوک دي ډېر رښتيني له الله نه له جهته د خبرې؟ (هېڅوک نشته)

الله فرمايي دا چې پدې دنيا کې څوک څه گناه وکوي نو هغه چې ستاسې د قوم او قبيلې او ستاسې سړی وي نو تاسې ورڅخه دفاع کوئ د **قيامت** په ورځ به څوک ورڅخه دفاع وکوي؟

**هَاأَنتُمْ هَؤُلاء جَادَلْتُمْ عَنْهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَمَن يُجَادِلُ اللّهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَم مَّن يَكُونُ عَلَيْهِمْ وَكِيلاً (109)** .[1]

ترجمة : واورئ خبردار شئ! تاسې اې هغو کسانو چې جگړه کوئ له (طرفه د) دوی په دې حيات دنيوي (ژوند لږ خسيس) کې پس څوک دی چې جگړه به وکړي له الله سره له (طرفه د) دغو (خيانتگرو) په ورځې د **قيامت** کې بلکه آيا څوک دي چې وي به (د **قيامت** په ورځې کې) د دوی وکيل (ساتونکی؟ بلکه هېڅوک نشته!).

الله فرمايي ځينې داسې خلک هم وي چې هغوی حالاتو ته گوري که برې د مسلمانانو په طرف شي نو دوی مسلمانانو ته وايي مونږ خو ستاسې په طرف وو او که برې د کفارو په برخه شي نو هغوی ته وايي مونږ خو ستاسې په طرف وو د دوی دا کار صرف په دنيا کې کيږي د **قيامت** په ورځ به الله د دوی په مينځ کې فيصله وکوي.

**الَّذِينَ يَتَرَبَّصُونَ بِكُمْ فَإِن كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِّنَ اللّهِ قَالُواْ أَلَمْ نَكُن مَّعَكُمْ وَإِن كَانَ لِلْكَافِرِينَ نَصِيبٌ قَالُواْ أَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ وَنَمْنَعْكُم مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ**

[1] سورة النساء

فَاللّهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَن يَجْعَلَ اللّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلاً (141) .[1]

ترجمة : هغه منافقان چې همېشه منتظر دي (حوادثو) ستاسې ته نو که وو تاسې ته برى له (لوري) د الله نو وايي دا (منافقان مسلمانانو ته) چې آيا نه وو مونږ له تاسې سره؟ او که وه کافرانو ته برخه (د بري) نو وايي دا (منافقان کفارو ته) چې آيا غالب شوي نه وو مونږ پر تاسې او (آيا) ومو نه ژغورلئ (بچ مو نه کړئ) تاسې له مؤمنانو څنې؟ نو الله به فيصله وکړي په مينځ ستاسې کې په ورځ د **قيامت** کې او له سره به ونه ګرځوي الله د پاره د کافرانو په مؤمنانو باندې هېڅ لاره (د حجت او د بري) .

د حضرت عيسى په اړه يهودان او نصرانيان دواړه په ګمراهي کې دي يهودان ګمان کوي چې دوى حضرت عيسى شهيد کړو او نصرانيان ورته ابن الله وايي دا دواړه ګمراهان دي تر **قيامت** وړاندې به حضرت عيسى را ښکته شي هلت به يهود هم پوه شي چې دوى په ګمراهي کې وو حضرت عيسى خو تر اوسه پورې ژوندى دى او نصرانيان به هم په هغه وخت کې په ده باندې سم ايمان راوړي الله فرمايي حضرت عيسى به د **قيامت** په ورځ په دوى باندې ګواهي ووايي :

وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلاَّ لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا (159).[2]

---

[1] سورة النساء
[2] سورة النساء

ترجمة : او نشته هېڅوک له هل د کتابه مگر قسم دی هرو مرو (خامخا) چې ایمان به راوړي دوی (په وخت د نزعې خپلې یا په وخت د نزول د عیسی پر دغه عیسی) پخوا له مرگه د ده څخه او په ورځ د **قیامت** کې به وي (عیسی) پر دوی باندې شاهد (چې یهودانو ونه منلم او نصرانیانو ((ابن الله )) وبللم)

الله فرمایي هغه کسان چې ځان ته نصارا وایي (د نصارا یوه معنی داده چې د نصر کلمې نه اخیستل شوی لفظ دی دوی به ویل مونږ په حقه د حق دین مرسته او نصرت کونکي یو) له دوی نه عهد اخیستل شوی وو چې دوی به وروسته راتلونکی نبي په حقانیت سره مني او ایمان به پرې راوړي او متابعت به یې کوي او په انجیل کې دوی ته پند ورکړل شوی وو لکن دوی هغه هېر کړل .

**وَمِنَ الَّذِينَ قَالُواْ إِنَّا نَصَارَى أَخَذْنَا مِيثَاقَهُمْ فَنَسُواْ حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُواْ بِهِ فَأَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاء إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللّهُ بِمَا كَانُواْ يَصْنَعُونَ (14).** [1]

ترجمة : او ځینو له هغو کسانو څخه چې وایي دوی بېشکه مونږ نصرانیان یو اخیستی وو مونږ محکم عهد د دوی نو هېره کړه دوی (غټه) برخه اخیستل له هغه شي چې پند ورکړل شوی وو دوی ته په هغه سره نو واچاوه مونږ په مینځ د دوی کې عداوت (دښمني) او بغض (کینه) تر ورځې د **قیامت**ه پورې او ژر به خبر ورکړي دوی ته الله په هغو کارونو چې وو دوی چې کول به یې .

الله فرمایي هغه کسان چې په دنیا کې کافران شوي دي او په همدې کفر کې مړه شویدي د **قیامت** په

[1] سورة المائدة

ورځ هېڅ شی هغه ته نجات نشي ورکولی او د **قیامت** په ورځ که چېرته په زمکه کې هرڅه او ورسره دومره نور دده په اختیار کې شي او دی یې ددې لپاره فدیه کول وغواړي چې دی وربانديې له عذابه خلاص شي نو بیا به هم له ده څخه نه قبلیږي .

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِي الأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لِيَفْتَدُواْ بِهِ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (36) .[1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي که وي دوی ته هغه (اقسام د اموالو) چې په زمکه کې دي ټول او په قدر د دې نور (هم) له دې سره شي د پاره د دې چې فدیه وکړي دوی په هغه سره له عذابه د ورځې د **قیامت** څخه نو قبوله به نه کړه شي (دا فدیه) له دوی څخه او شته دوی ته عذاب ډېر دردناک.

الله مونږ ته ښکاره کوي چې کله رسول الله ﷺ راغلو په هغه وخت کې یهود په خپل عداوت او دښمني کې څومره وړاندې تللي وو او څومره ګستاخ وو چې د الله د شان یې هم څه ادب او احترام نه ساتلو او د الله په حق کې به یې ویل چې د هغه (نعوذ بالله) لاسونه تړلي دي الله فرمايي چې د **قیامت** تر ورځې پورې مې په دوی کې عداوت اچولی دی .

وَقَالَتِ الْيَهُودُ يَدُ اللّهِ مَغْلُولَةٌ غُلَّتْ أَيْدِيهِمْ وَلُعِنُواْ بِمَا قَالُواْ بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ يُنفِقُ كَيْفَ يَشَاء وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَكُفْرًا وَأَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاء إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ كُلَّمَا

---

[1] سورة المائدة

أَوْقَدُواْ نَارًا لِّلْحَرْبِ أَطْفَأَهَا اللّهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الأَرْضِ فَسَادًا وَاللّهُ لاَ يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ (64).[1]

ترجمة : او وايي يهوديان لاس د الله بند كړل شوى دى (يعني مونږ ته هېڅ نه راكوي او روزي يې را باندې تنګه كړې ده) تړلي دې وي (يا تړل شوي دي) لاسونه د هم دوى او لعنت كړل شوى دى پر دوى په سبب د هغه چې وائي دوى بلكه يدين د ده غزولي (خلاص) دي روزي وركوي (هرچا ته او صرفوي ئې) هر رنګه چې اراده وفرمايي او خامخا زياتوي ډېرو ته له دوى نه هغه (قرآن) چې نازل كړل شوى دى تاته له ربه ستا سر كشي او كفر او غورځولي دى مونږ په مينځ د دوى كى عداوت (دښمني) او بغض (نفرت) تر ورځې د **قيامت** پورې هر كله چې بلاوه دوى اور د پاره د جنګ (د رسول الله نو) مړ كاوه به هغه (اور) الله او سعيه كوي (ځغلي) دوى په زمكه كې له پاره د فساد اچولو او الله نه خوښوي فساد كوونكي (نو په سزا ئې رسوي) .

الله فرمايي چې دوى ته ووايه چې تاسې ټول به الله د **قيامت** د ورځې لپاره ټولوي :

قُل لِّمَن مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ قُل لِلّهِ كَتَبَ عَلَى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ لاَ رَيْبَ فِيهِ الَّذِينَ خَسِرُواْ أَنفُسَهُمْ فَهُمْ لاَ يُؤْمِنُونَ (12).[2]

ترجمة : ووايه (اې محمده! دوى ته) چې چا لره دى (خلقاً ، ملكاً او عبيداً) هغه شيونه چې په آسمانونو كې او په زمكه كې دي (سره له آسمانونو او زمكې) ووايه (اې محمده ! دوى ته)

---

[1] سورة المائدة
[2] سورة الانعام

چې خاص الله لره دي (بل څوا ب نشته) لازم کړي دي الله (تفضلاً) پر نفس خپل رحمت خامخا ټول به کړي (الله ) هرو مرو (خامخا) تاسې په ورځ د **قيامت** کې چې نشته هېڅ شک په (راتلو د) هغې کې هغه کسان چې زيان ئې رسولی دی ځانونو خپلو ته (د اصلي فطرت او سليم عقل په ضياع) نو دوی ايمان نه را وړي.

الله فرمايي :

**قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللّهِ الَّتِيَ أَخْرَجَ لِعِبَادِهِ وَالْطَّيِّبَاتِ مِنَ الرِّزْقِ قُلْ هِي لِلَّذِينَ آمَنُواْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَذَلِكَ نُفَصِّلُ الآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ (32).** [1]

ترجمة: ووايه (اې محمده! دوی ته) چې چا حرام کړي دي زينت د الله هغه چې ايستلی ئې دی د پاره د بندګانو خپلو؟ او (چا حرام کړی دی) پاک لذيذ شيان له رزقه څنې (چې د خوړلو او څښلو دي؟ يعني دا يو هم نه دی حرام) ووايه (اې محمده ! دوی ته) چې دغه (زينت او طيبات او نور نعمتونه اصلاً) لپاره د هغه کسانو دي چې ايمان يې راوړی دی (او تبعاً دي کفارو ته) په دې ژوندون لږ خسيس کې حال دا چې خاص (مؤمنانو لره) دی په ورځ د **قيامت** کې هم دارنګه (لکه دا پاس تفصيل) په تفصيل بيانوو مونږ آيتونه له پاره د (هغه) قوم چې پوهېږي (پرې) .

الله فرمايي :

**وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَن يَسُومُهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ إِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيعُ الْعِقَابِ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ (167).** [1]

---

[1] سورة ا لاعراف

ترجمة : او (یاد کړه) هغه وخت چې خبر ورکړی ؤ رب ستا (ددې خبرې) قسم دی خامخا مسلط به کړم په دغو (یهودانو) تر ورځې د **قیامت** پورې هغه څوک چې رسوي به دوی ته سخت عذاب (لکه وژل، شړل، جزیې پرې مقرر کول) بېشکه رب ستا خامخ ژر دی عذاب (د ده هغه چا ته چې د عذاب اراده یې وفرمایي) او بېشکه دغه (الله ) خامخا ښه بښونکی (د خطیاتو) ډېر رحم والا دی (په انعام د اجر او ثواب سره) .

الله زمونږ د ارواحو نه تعهد اخیستی دې چې دی به په ربوبیت سره مني او هغه تعهد مونږ ته یو ځل بیا په قرآن کریم کې را تکرار کوي چې د **قیامت** په ورځ ورځخه انکار ونه کوو الله فرمایي :

**وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِن بَنِي آدَمَ مِن ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنفُسِهِمْ أَلَسْتَ بِرَبِّكُمْ قَالُواْ بَلَى شَهِدْنَا أَن تَقُولُواْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَذَا غَافِلِينَ (172)** .[2]

ترجمة : او (یاد کړه ای محمده!) هغه وخت چې واخیست رب ستا له بنې آدمو ځنې له شاګانو د دوی څخه اولادې د دوی او شاهدان یې کړل دوی پر ځانونو خپلو باندې (او وفرمایل الله دوی ته) آیا نه یم زه رب ستاسې! وویل دوی (او اقرار ئې وکړ) هو! (ته رب زمونږ ئې په ربوبیت د الله ) ګواه کړل مونږ خپل نفسونه (ددې جهته) چې و (نه) وایئ تاسې په ورځ د **قیامت** کې چې بېشکه مونږ وو له دغه توحیده غافلان (نا خبران) .

---

[1] **سورة الاعراف**
[2] **سورة الاعراف**

الله فرمايي هغه کسان چې په الله پسې درواغ تړي د دوی د **قيامت** د ورځې په اړه څه ګمان دی چې څه به ورسره وشي؟

**وَمَا ظَنُّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللّهِ الْكَذِبَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّ اللّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لاَ يَشْكُرُونَ (60)** [1]

ترجمة : او څه شی دی ګمان د هغه کسانو چې له ځانه تړي پر الله باندې دروغ په ورځ د **قيامت** کې (چې څه به ورسره وکړي الله ) بېشکه الله خامخا څېښتن (خاوند) د فضل دی پر خلقو (په ارسال د رسولانو او انزال د کتابونو او تاخير د عذاب) وليکن اکثره خلق نه وباسي شکر (په دغه نعمتونو) .

الله فرمايي بني اسرائيلو ته مونږ د فرعونيانو له هلاک نه وروسته ښه ځای ورکړو او کله چې دوی ته په تورات باندې او په احکامو د هغه باندې علم ورکړل شو دوی پکې تحريف وکولو او بيا يې اختلافونه شروع کړل دوی چې په څه کې اختلاف کوي ددوی په مينځ کې به الله د **قيامت** په ورځ فيصله وکوي .

**وَلَقَدْ بَوَّأْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ مُبَوَّأَ صِدْقٍ وَرَزَقْنَاهُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ فَمَا اخْتَلَفُواْ حَتَّى جَاءهُمُ الْعِلْمُ إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُواْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ (93)** [2]

ترجمة : او خامخا په تحقيق ځای ورکړ مونږ بني اسرائيلو ته (پس له اهلاکه د فرعونيانو) ځای د صدق (رښتينی لائق په مصر او شام کې) او غوره رزق روزي مو ورکړه دوی ته له طيباتو (پاکيزه

---

1 **سورة يونس**

2 **سورة يونس**

وو ځیزونو لذتناکو) نو اختلاف ونه کړ دوی (په دین کې) تر هغه پورې چې راغی دوی ته علم (پر احکامو د تورات او دوی پکې تغیر وکړ) بېشکه رب ستا حکم (فیصله) به وکړي په مینځ د دوی کې په ورځ د **قیامت** کې په هغه ځیز کې چې وو دوی چې په هغه کې یې اختلاف کاوه (له احکامو ددین ځخه) .

الله فرمایي په عادیانو باندې په دې دنیا کې او هم د **قیامت** په ورځ به وربانديې لعنت وي :

**وَأُتْبِعُواْ فِي هَذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ أَلا إِنَّ عَادًا كَفَرُواْ رَبَّهُمْ أَلاَ بُعْدًا لِّعَادٍ قَوْمِ هُودٍ (60)** .[1]

ترجمة : او ولېږلى شو (په دوی پسې) په دغې دنیا کې لعنت ( چې هلاک کړل شول په سخت باد) او په ورځ د **قیامت** کې (هم په اور کې سوزي) خبردار شئ بېشکه عادیان کافران شوي وو په رب خپل بیا واورئ خبر دار شئ چې لرې والى (له رحمته د الله نه) عاد قوم د هود ته .

ځوک چې خپله گمراه وي هغه به قوم ته ځه هدایت وکوي الله فرمایي د **قیامت** په ورځ به فرعون د خپل قوم نه مخکې شي او ټول به دوزخ ته بوزي .

**يَقْدُمُ قَوْمَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَأَوْرَدَهُمُ النَّارَ وَبِئْسَ الْوِرْدُ الْمَوْرُودُ (98) وَأُتْبِعُواْ فِي هَذِهِ لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ بِئْسَ الرِّفْدُ الْمَرْفُودُ (99)**.[2]

ترجمة : مخکې به شي (دغه فرعون) د قوم خپل په ورځ د **قیامت** کې نو ننه به باسي هغوی په اور کې او بد ځای د ورتلو (د دوی هغه) دی چې ور وستل

---

[1] سورة هود
[2] سورة هود

شي دوى (هغه ته چې اور دى) او ورپسې لګولى شوى دى په دغه دنيا کې لعنت او په ورځ د **قيامت** (هم) بد انعام دى (هغه چې دوى ته) ورکړل شوى (دى) .

په دنيا کې ځينې داسې خلک وي چې خپله خو ګمراه وي د نورو خلکو د ګمراه کولو کوشش هم کوي الله فرمايي کله چې نور خلک چې دده په خبره يې باور کيږي او مني يې له دوى نه پوښتنه وکوي الله په خپل کتاب کې څه شى نازل کړي دي؟ دوى ورته وايي هسې پخوانى افسانې دي نو ددې امله به د **قيامت** په ورځ دى خپله ګناه هم وړي او د هغه کسانو چې ده ګمراه کړي دي د هغوى ګناه هم په غاړه وړي الله فرمايي :

**لِيَحْمِلُواْ أَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمِنْ أَوْزَارِ الَّذِينَ يُضِلُّونَهُم بِغَيْرِ عِلْمٍ أَلاَ سَاء مَا يَزِرُونَ (25).**[1]

ترجمة : (نو الله فرمايي دا وينا کوي دوى) د پاره ددې چې په شا واخلي پيټى (د ګناهونو) خپلو پوره په ورځ د **قيامت** کې او (هم داسې واخلي) له پيټي (د ګناهونو) د هغو کسانو چې ګمراه کړي دي دوى هغوى لره په ناپوهي واورئ خبردار شئ چې بد دى هغه څيز چې باروي دوى (پر شا وو خپلو) .

دغه کسان چې اوس الله نه مني او د هغه وحدانيت نه مني په **قيامت** کې به يې الله شرموي او ورته به وايي زما شريکان چېرته دي ؟

[1] **سورة النحل**

ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُخْزِيهِمْ وَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَآئِيَ الَّذِينَ كُنتُمْ تُشَاقُّونَ فِيهِمْ قَالَ الَّذِينَ أُوتُواْ الْعِلْمَ إِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ وَالْسُّوءَ عَلَى الْكَافِرِينَ (27) .[1]

ترجمة : بيا په ورځ د **قيامت** کې به (الله) وشرموي) رسوا کړي دوی او وبه فرمايي (الله ) چې چېرته دي شريکان زما (په زعم ستاسې سره) هغه چې وئ تاسې چې مخالفت به مو کاوه ( له انبياوو او مؤمنانو سره) په باب د دوی کې وبه وايي هغه کسان چې ورکړل شوی دی دوی ته علم (يعني ملائک ، انبياء او علماء) چې بېشکه خواري د نن ورځې او بدي (يعني عذاب يې) پر کافرانو دی.

په قرآن کريم کې يوم القيامة ۷۰ ځله ياد کړل شوی دی زه په همدې آيتونو اکتفاء کوم .

[1] سورة النحل

## يــومــاً

يـعـنـي ورځ د **قيامت** ورځ تـه صرف ورځ هم ويـل شـوېـده او د تـسمـيـې وجـه يـې داده چې پـه ورځـو كـې دا ډېــره عـجـيـبـه او د عـجـيـبـو صفـاتـو لـرونـكـې ورځ ده الله فـرمـايــي : **وَاتَّقُواْ يَوْماً لاَّ تَجْزِي نَفْسٌ عَن نَّفْسٍ شَيْئاً وَلاَ يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ وَلاَ يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ وَلاَ هُمْ يُنصَرُونَ** (٤٨). [1]

تـرجـمـة : او وويـريـږئ (لـه عـذابـه) د هـغـې ورځـې چې لـرې كـولـى بـه نـه شي هېڅ نـفـس لـه هېڅ (كـافـر) نـفـس څخه هېڅ (لـه عـذابـه) او نـه بـه مـنـل كېده شي لـه دغه نـفـس څخه شفـاعت (سپـارښت د هېچا) او وابـه نـه خـيـستـى شى لـه دغه نـفـس څخه بـدل (فـديـه) او نـه بـه لـه دوى سره مـدد و كـړل شي (پـه دفـع د عذاب كـې) .

پـه بـل ځـاى كـې الله فـرمـايـي : **وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَلَن يُخْلِفَ اللَّهُ وَعْدَهُ وَإِنَّ يَوْماً عِندَ رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ** . [2]

تـرجـمـة : او بـيـړه (تـلـوار) كـوي (كـفـار) پـه تـا پـه (راوستـلـو د) عذاب او لـه سره بـه خلافـه نـه كـړى الله وعده خـپـلـه، او بـېـشكـه يـوه ورځ پـه نـزد د رب سـتـا (لـه ورځـو د آخرت، اوږده ده) لـكـه زر كـالـه لـه هـغـو كـلـونـو څخه چې شمېـرئ ئـې تـاسې (پـه دنـيـا كـې) .

او پـه ټـول قـرآن كـريـم كـې ١١ ځـلـه لـه **قيامت** نـه تـعـبـيـر پـه يـوم سره شـوى دى .

## ددې ورځـې صفــات

[1] سورة الـبـقـرة آيـة ٤٨
[2] سورة الـحج آيـة ٤٧

په کوم ځای کې چې د **قيامت** نه تعبير په يوم (ورځ) سره شوی دی هلته دې ورځې ته لاندې صفات ثابت شوي دي .

هسې ورځ چې پدې ورځ به هېڅوک د بل نفس لپاره څه نشي کولی .

هسې ورځ چې پدې کې ټول ټول خلق به الله ته ورځي او هرچاته به د هغه جزا پوره ورکوله کيږي او له دوی سره به ظلم نه کيږي .

ددې ورځې حساب له الله سره لکه د زرو کلونو داسې دی هغه چې تاسې يې شمارئ .

پدې ورځ کې زړونه او سترګې آوړي

پدې ورځ کې ماشومان بوډاګان کيږي ..

داسې ورځ چې پلار د زوی او زوی د پلار لپاره پکې هېڅ نشي کولی .

هسې ورځ چې په کافرانو باندې به ډېره سخته وي .

# يــومــئـذٍ

يـعـني هغه ورځ پـه قـرآن كـريـم كې پـه يـومـئـذ (هغه ورځ) بـانـدې هم د **قيامت** نـه پـه مـتـعـدد ځـلـه تـعـبـيـر شـوى دى الله فـرمـايـي : **يَوْمَئِذٍ يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُواْ وَعَصَوُاْ الرَّسُولَ لَوْ تُسَوَّى بِهِمُ الأَرْضُ وَلاَ يَكْتُمُونَ اللّهَ حَدِيثاً** .[1]

ترجمة : پـه دغه ورځ كې بـه آرزو كـوي هغه كسان چې كـافـران شوي وو او نـافـرمـانـي ئې كړې وه لـه رسولـه دا چې كـاش كـه همـواره كړل شوې وى پـر دوى بـانـدې ځمكه او نـه بـه پـټـوي دوى لـه الله څخه هېڅ خبـره .

پـه بـل ځـاى كې الله فـرمـايـي : **وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ فَمَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ فَأُوْلَـئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ** .[2]

ترجمة : او تـول (د عمـلـونـو) پـه دغې ورځې كې حق (او بـرابـر) دى (دپـاره د قـطع د عذر) نـو د هر چا چې درانـه وختل تـولـونـه (يـا تـلـلى شوى نـيک عمـلـونـه) د ده نـو دغه كسان هم دوى دي كـامـيـاب

او پـه قـرآن كـريـم كې يـومـئـذ لـفظ ٦٦ ځـلـه ذكـر شوى دى .

---

[1] **سورة الـنساء آيـة ٤٢**

[2] **سورة الاعراف آيـة ٨**

## يــوم عظـيـم

يـعـنـي لــويــه ورځ د **قيامت** ورځې تــه لــويــه ويــل شـوېـده يــا خـو ددې املـه چې پـدې ورځ بـه مصيبت ډېـر لـوى وي ، او يــا دا چې پـدې ورځ بــه لــوى لــوى كـارونــه كـيږي او يـا دا چې داسې لــويــه او اوږده ورځ بــه وي چې د دنـيـا پـه ورځـو كې يې هېڅ سارى نـه وو.

الله فـرمـايــي : **قُلْ إِنِّيَ أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ** [1] .

تــرجـمـة : او ورتــه ووايــه كـه زه د خـپـل رب نــا فــرمــانــي وكـوم زه د لــويــې ورځې د عذاب نــه ډاريــږم .

پــه بــل ځـاى كې الله فــرمــايــي : **لَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحاً إِلَى قَوْمِهِ فَقَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُواْ اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَـهٍ غَيْرُهُ إِنِّيَ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ** . [2]

تــرجـمـة : قـسم دى پــه تـحقـيـق لــيـږلــى ۋ مــونــږ نــوح پــه لــوري د قــوم د ده نــو وويــل ((نــوح)) اى قـومـه زمـا عبـادت كـوئ تــاسې د الله نـشتـه تـاسى تـه هيڅ معبـود بــى لـه دغـه (الله ) ، بـېشكه زه ويـريــږم پــه تــاسې بــانـدې لــه عذاب د ورځې لــويــې.

پــه قــرآن كـريـم كې ٨ ځـلـه د **قيامت** ورځې تــه يــوم عظيم (لــويــه ورځ) ويــل شـوي دي .

## يــوم الـحشر

---

[1] **سورة الانـعـام آيـة ١٤**
[2] **سورة الاعراف آيـة ٥٩**

يعني د را جمع كېدلو ورځ ، د را ټولېدلو ورځ او د **قيامت** ورځ ته د را جمع كېدلو ورځ ويل كيږي ځكه پدې ورځ باندې هم خلق د حساب لپاره د الله حضور ته را جمع كيږي او را ټوليږي الله فرمايي : **وَيَوْمَ يُحْشَرُ أَعْدَاء اللَّهِ إِلَى النَّارِ فَهُمْ يُوزَعُونَ.** [1]

ترجمة : او (ياده كړه) هغه ورځ چې راټول به كړل شي دښمنان د الله اور (د دوزخ) ته پس دوى به ډلې ډلې كړل شي .

په بل ځاى كې الله فرمايي : **وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ فَيَقُولُ أَأَنتُمْ أَضْلَلْتُمْ عِبَادِي هَؤُلَاء أَمْ هُمْ ضَلُّوا السَّبِيلَ .** [2]

ترجمة : او (ياده كړه اى محمده هغه ورځ چې راجمع به كړي (الله ) دغه (كفار) او هغه (باطل معبودان) چې عبادت كاوه دوى غير له الله (هغوى ته) پس وبه وائي (الله دغو معبودانو ته) آيا تاسې گمراه كړي وو بندگان ځما دغه (چې مشر كان) دي او كه دوى پخپله وركه كړې وه لياره (د حق بى له سعيې د تاسې) ؟ .

په قرآن كريم په حشر او د هغه په مشتقاتو سره له **قيامت** نه په ۹ ځايونو كې تعبير شوى دى .

## يوم البعث

يعني د بيا را ژوندي كېدلو ورځ او ښكاره خبره ده چې پدې ورځ باندې مړي را ژوندي كيږي او له قبرونو څخه را پورته كيږي ځكه ورته د بعث يعني بيا را ژوندي كېدلو ورځ ويل كيږي .

---

[1] **سورة فصلت آية ۱۹**
[2] **سورة الفرقان آية ۱۷**

ﷲ فرمايي : وَقَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ وَالْإِيمَانَ لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِي كِتَابِ اللَّهِ إِلَى يَوْمِ الْبَعْثِ فَهَذَا يَوْمُ الْبَعْثِ وَلَكِنَّكُمْ كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ. [1]

ترجمة : او وائي به دوى ته هغه كسان چې ور كړل شوى وو دوى ته علم او ايمان (يعنى انبياء ، پرښتى ، مؤمنان)

په بل ځاى كې ﷲ فرمايي : يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ جَمِيعاً فَيَحْلِفُونَ لَهُ كَمَا يَحْلِفُونَ لَكُمْ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ عَلَى شَيْءٍ أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ الْكَاذِبُونَ . [2]

ترجمة : (ياده كړه اى محمده !) هغه ورځ چې ژوندي پورته كړي (دوى) ﷲ ټول نو قسمونه به خوري دوى ﷲ ته لكه چې قسمونه به يې خوړل تاسې ته (په دنيا كې اى مسلمانانو) او ګمان به كوي (دوى) چې بېشكه دوى په يو شي دى (نفعمن او پر كومه ښه لاره درومى) واورئ ! خبردار شئ ! چې بيشكه دوى هم دوى دى دروغجنان (چې له ﷲ سره هم دروغ وائى) .

په قرآن كريم كې د **قيامت** ورځې ته ١٨ ځله بعث او د هغه مشتقات استعمال شوي دي .

## يوم الا زفة

يعني هغه ورځ چې زر واقع كېدونكې ده **قيامت** ته يوم الا زفة ځكه وايي چې دا هم زر واقع كيږي ځكه هرشى چې راتلونكى وي نو هغه زر دي ﷲ

[1] سورة الروم آية ٥٦
[2] سورة المجادلة آية ١٨

فرمايي : وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الآزِفَةِ إِذِ الْقُلُوبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ كَاظِمِينَ مَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ حَمِيمٍ وَلا شَفِيعٍ يُطَاعُ .[1]

ترجمة : او وويروه (اى محمده !) دغه كفار له عذابه د ورځې نږدې كله چې زړونه به په نږد د چنغړ كو وى په دى حال كې چى غم كوونكى (پورې راوورې) به وي (خاوندان د زړونو) نه به وي ظالمانو ته (په **قيامت** كې) هېڅوك دوست او نه كوم شفاعتګر چى خبره ئې ومنله شي .

## يوم البعث

يعني د بيا را ژوندي كېدلو ورځ او **قيامت** ته يوم البعث ددې امله وايي چې پدې كې هم ټول مړي را ژوندي كيږي او له قبرونو څخه را پورته كيږي الله فرمايي : وَقَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ وَالإِيمَانَ لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِي كِتَابِ اللَّهِ إِلَى يَوْمِ الْبَعْثِ فَهَذَا يَوْمُ الْبَعْثِ وَلَكِنَّكُمْ كُنتُمْ لا تَعْلَمُونَ .[2]

ترجمة : او وائي به دوى ته هغه كسان چې وركړل شوى وو دوى ته علم او ايمان (يعنى انبياء ، پرښتې ، مؤمنان چې ولې دروغ وائي بلكه) خامخا په تحقيق ډير پاتى شوي يئ (په دنيا كې چې هغه ليكلي دى) په كتاب د الله (لوح محفوظ) كې تر ورځې د بعث پورې پس دغه ده ورځ د بعث (چې تاسى ترى منكران وئ) ولېكن تاسې وئ په دنيا كې چې د جهل او غفلت له امله (وجې) نه پوهېدئ (د دغې ورځې په وقوع) .

## يوم التغابن

---

[1] سورة الغافر آية ١٨
[2] سورة الروم آية ٥٦

يعني د غبن (د دوکې ورکولو) ورځ او د **قيامت** ورځ ته د غبن ويل کيږي وجه يې حضرت عبد الله بن عباس فرمايي : **ذلك أن أهل الجنة يغبنون أهل النار.**

ترجمة : دا ځکه چې دا جنتيان دوزخيان غلتوي دوی جنت او هغوی به دوزخ ته ځي.

حضرت مقاتل بن حيان فرمايي

**لا غبن أعظم من أن يدخل هؤلاء إلى الجنة، ويذهب بأولئك إلى النار .**

ترجمة :ترديې بيا لوی غبن نشته چې دا ډله جنت او دا ډله بيا دوزخ ته لاړ شي.

الله فرمايي : **يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ الْجَمْعِ ذَلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ .** [1]

ترجمة : (ياده کړه) هغه ورځ چې راجمع به کړی (او خبر به درکړی الله ) تاسو لره په ورځ د جمع کېدلو (**قيامت**) کې دا (ورځ چې ده) ورځ د نفعې او نقصان ده (چې مؤمنان جنت ته ځي او کافران په دوزخ کې لويږی او غبن ئې ظاهريږي يا ځينې نيکان به هم په سبب د تقصير د نيکي او د احسان خپل زيان ويني) .

## يوم التلاق

يعني د ملاقات ورځ او **قيامت** ته د ملاقات ورځ ويل کيږي علماوو يې مختلفې وجې ويلي دي د مثال په توګه :

[1] **سورة التغابن آية ٩**

امام قتادة او ابو العالية فرمايي **يلتقي فيه الخلق والخالق** (يعني پدې ورځ خالق او مخلوق سره ملاقات كوي) .

حضرت عبد الله بن عباس فرمايي : **يوم يلتقي أهل السماء وأهل الأرض** (ځكه چې پدې ورځ د زمكې او اسمان خلق سره ملاقات كوي) .

او ځينې وايي چې پدې ورځ به عابدين او معبودين (هغه چې عبادت يې كړى وي او هغه چې عبادت يې شوى وي) سره مخامخ كيږي ځينې وايي چې ددې امله ورته د ملاقات ورځ وايي چې پدې ورځ به ظالم او مظلوم سره مخامخ كيږي او ځينې وايي چې ددې امله ورته ويل كيږي چې هرڅوك به د خپل عمل له سزا او جزاء سره مخامخ شي او ځينې وايي چې پخواني او وروستني خلق ټول په يوځاى سره مخامخ كيږي امام قرطبي فرمايي دا ټولې وجې هم صحيح كېدلى شي او صحيح دي .

الله فرمايي : **رَفِيعُ الدَّرَجَاتِ ذُو الْعَرْشِ يُلْقِي الرُّوحَ مِنْ أَمْرِهِ عَلَى مَن يَشَاء مِنْ عِبَادِهِ لِيُنذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ يَوْمَ هُم بَارِزُونَ لا يَخْفَى عَلَى اللَّهِ مِنْهُمْ شَيْءٌ لِّمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ لِلَّهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ** [1]

ترجمة : (هم دغه الله ) پورته كوونكى د درجو (د مؤمنانو) دى څښتن (مالک) د عرش دى راليږى روح (جبريل يا پټې خبرې) په امر حكم خپل پر هغه چا چې اراده وفرمائي له بند ګانو خپلو دپاره د دې چې وويروي (خلق) له ورځې د ملاقات (چې په كې يو ځاى كيږي خالق او مخلوق او نور) په هغه ورځ كې چې دوى به راښكاره وى (بهر راولاړ له قبورو) پټ به نه وى پر الله له دوى نه هيڅ څيز چا لره دى سلطنت (نو جواب فرمائي

[1] سورة غافر آية ١٥-١٦

پخپله الله ) نن ورځ خاص الله لره دی (سلطنت) چې
یو دی ښه غالب قوی .

## یوم التناد

تناد له نداء څخه دی یعني یو بل ته د اواز
کولو ورځ دې ورځې ته د تناد ورځ ویل کیږي ځکه
پدې ورځ به جنتیان دوزخیانو ته اواز کوي چې
الله له مونږ سره څه وعده کړې وه هغه خو مونږ
ته را ورسېدل آیا لتاسې سره چې د کوم شي وعده
شوې وه تاسې ته در ورسېدل؟ همدارنګه یو اواز
کونکی به اواز کوي او د ځینې خلقو نومونه به
اخلي چې فلانی شقي دی او فلانی سعید دی او ملائک
به جنتیانو ته اوازونه کوي چې دا هغه ستاسې
جنت دی چې تاسې ته ستاسې په عملونو درکړ ل
شوی دی .

الله فرمایي : **وَيَا قَوْمِ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ يَوْمَ التَّنَادِ** . [1]

ترجمة : او ای قومه زما بېشکه زه ویریږم پر
تاسې له (عذابه د) ورځې د رابللو (په چغو سره
یو بل ته) .

## یوم الجمع

یعني د را ټولېدلو ورځ **قیامت** ته د را ټولېدلو
ورځ ویل کیږي ځکه پدې ورځ کې الله مخکني او
وروستني خلق ټول په یوځای سره را ټولوي
همدارنګه پېریان ، انسانان ، د زمکې او اسمان
خلق او ځینې خلق وایي چې د یوم الجمع ورته
ددې امله ویله کیږي چې الله پدې ورځ انسان او د
هغه عمل سره یو ځای کوي او یا ددې امله چې

---

[1] سورة غافر آية ٣٢

ظالم او مظلوم به دواړه سره يو ځای کړي او يا ددې امله چې هر نبي او د هغه تابعداران به سره ټول کړل شي .

په قرآن کريم **قيامت** ته يوم الجمع ويل شوي دي الله فرمايي :

لِّتُنذِرَ أُمَّ الْقُرَى وَمَنْ حَوْلَهَا وَتُنذِرَ يَوْمَ الْجَمْعِ لا رَيْبَ فِيهِ .[1]

ترجمة : دپاره د دی چی وويروې (اهل د) مور د ښارونو (چې مکه ده) او هغه کسان چې چاپير دي له دې نه . او چې وويروي (خلق) له ورځې د جمع کېدلو (چې ورځ د **قيامت** ده) چې نشته هېڅ شک په (وقوع د) دغه (**قيامت** کې) .

## يوم الحساب

د حساب او شمېر ورځ د **قيامت** ورځې ته يوم الحساب ددې امله ويل کيږي چې الله پدې ورځ د خپلو بندګانو سره د هغوی د عملونو حساب کوي همدارنګه بنده ته به خپل نعمتونه ور حسابوي او د هغې په اړه ده څه کړي دي حساب به ورسره کوي **قيامت** ته چې په قرآن کريم يوم الحساب ويل شوي دي هلته الله فرمايي :

وَقَالَ مُوسَى إِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي وَرَبِّكُم مِّن كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ الْحِسَابِ.[2]

ترجمة : او وويل موسی (قوم خپل ته) چې بېشکه زه پناه غواړم په رب خپل او په رب ستاسې له

---

[1] سورة الشورى آية ٧
[2] سورة غافر آية ٢٧

(شره د) هر متکبره (سرکشه) چې نه راوړي ایمان په ورځ د حساب .

## الحاقة

یعني رښتونې ورځ د **قیامت** ورځ ته حاقه ددې امله وایي چې پدې ورځ کې به هرڅه حق او رښتیا کیږي او پدې ورځ کې به د عملونو حقه جزا او سزا ورکوله کیږي او یا ددې امله ورته حاقه وایي چې دې ورځې د هر عمل کونکي لپاره دهغه جزا او سزا حق او ثابته کړه او یا ددې امله ورته حاقه ویل کیږي چې پدې کې هېڅ شک نشته د ﷲ سورة حاقه په سره کې فرمایي : **الْحَاقَّةُ مَا الْحَاقَّةُ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْحَاقَّةُ** . [1]

ترجمة : هغه (**قیامت**) حق واقع کیدونکی – څه شی دی هغه حق واقع کیدونکی . او څه شی پوه کړی ئې ته چې څه شی دی هغه (**قیامت**) حق واقع کېدونکی .

## یوم الحسرة

یعني د خفګان ورځ او د **قیامت** ورځ ته یوم الحسرة ددې امله ویل کیږي چې پدې ورځ به کافر په خپل کفر ظالم په خپل ظلم او هر بد عمل انسان په خپلو علمونو ډېر زیات خفګان کوي کله چې دوی وګوري هغه کسان چې نېک عملونه یې کول ډلې ډلې جنت ته لاړ شي او کافران ، ظالمان او بد عمله خلق به ډله کې د دوزخ لور ته روان کړل شي او په وړاندې به هېڅ لاره نهویني چې لدې حالت نه ځان وژغوري او یا و تښتي نو ډېر زیات خفګان به وکوي .

[1] سورة الحاقة آیة ١:٣

په قرآن کريم کې چېرته چې د **قيامت** ورځ ته يوم الحسرة ويل شوى دى هلته الله فرمايي : **وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ إِذْ قُضِيَ الأَمْرُ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ وَهُمْ لا يُؤْمِنُونَ** . [1]

ترجمة : او وويروه ته دوى له ورځې د حسرت (او ارمانه) کله چې فيصله کړل شي کار (دحساب او کتاب) حال دا چې دوى (په دنيوى) غفلت کې دي او دوى ايمان نه راوړى .

## يوم الخلود

يعني د همېشه والي ورځ د **قيامت** ورځې ته يوم الخلود ويل کيږي ځکه لدې نه وروسته بله ورځ نه راځي او همدا به همېشه او دائمه وي داسې به بيا نه کيږي لکه په دنيا کې چې يوه ورځ به تېره شوه بيا به شپه شوه او بيا به ورځ وه.

الله فرمايي : **ادْخُلُوهَا بِسَلامٍ ذَلِكَ يَوْمُ الْخُلُودِ** . [2]

ترجمة : (نو وبه فرمائي الله ) ځئ ننوځئ پکې په سلامتيا سره دا ورځ د ورننوتلو په جنت کې ورځ ده د همېشه توب په هغه کې .

## يوم الخروج

يعني د وتلو ورځ او **قيامت** ته يوم الخروج ددې امله ويل کيږي چې پدې ورځ کې به ټول مړي له خپلو قبرونو څخه را بهر شي او د حشر ميدان ته به سره راټول شي .

[1] سورة مريم آية ٣٩
[2] سورة ق آية ٣٤

ﷲ فرمايي : يَوْمَ يَسْمَعُونَ الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ ذَلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ . [1]

ترجمة : هغه ورځ چې واوري (دغه خلق) سخته چغه د (اسرافيل) په حقه سره دا (ورځ د آواز) ورځ د وتلو ده (له قبورو) نه .

## الساعة

(لحظه) او قيامت ته الساعة هم ويل کيږي ځکه دا دنيا آخري لحظه وي يعني آخري ساعت وي .

ﷲ فرمايي : إِنَّ السَّاعَةَ ءاَتِيَةٌ أَكَادُ أُخْفِيهَا لِتُجْزَى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا تَسْعَى . [2]

ترجمة : بيشکه قيامت راتلونکی دی زه اراده لرم د دې چې پټ کړم (وقت د راتللو د قيامت) دپاره د دې چې جزا ورکړه شي هر نفس ته په هغو عملونو چې کوي ئې (له خير او شره) .

## الصاخة

يعني کريکه (تيز اواز) د قيامت ورځ ته الصاخة هم ويل کيږي پدې ورځ به هم د شپېلۍ يو تېز اواز پورته شي چې هر غوږ ته به ورسيږي حضرت عکرمة فرمايي ددې الصاخة څخه مراد اوله شپېلۍ ده .

ﷲ فرمايي : فَإِذَا جَاءتِ الصَّاخَّةُ يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ وَأُمِّهِ وَأَبِيهِ وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأْنٌ يُغْنِيهِ . [1]

---

[1] سورة ق آية ٤٢

[2] سورة طه آية ١٥

ترجمة : کله چې کریکه راشي هغه ورځ چې تښتي به سړي له خپله وروره او له خپلې مور او له پلاره او له خپلې ملګرې (ښځې) او له خپلو زامنو . هر سړي لره له هغوی څخه په دغې ورځې کې به یو حال وي چې بې پروا کوي ئې (له نورو احوالو نه) .[1]

## الطامة

یعني غالبه کېدونکې ورځ څرنګه چې دا ورځ په هرشي غالبه ده او پدې ورځ به ټول مخلوقات مغلوب شي او بادشاهي به یوازې الله لره وي نو ځکه دیته الطامة ویل کیږي الله فرمایي : **فَإِذَا جَاءتِ الطَّامَّةُ الْكُبْرَى يَوْمَ يَتَذَكَّرُ الإِنسَانُ مَا سَعَى** .[2]

ترجمة : پس کله چې راشی آفت بلاء لویه (**قیامت** یا وخت د ورتګ د کفارو جحیم ته او د مؤمنانو نعیم ته) په هغه ورځ به یاد کړي انسان هغه څه چې کړي ئې وي (که خیر وي یا شر په دنیا کې) او څرګند (ښکاره) به کړل شي دوزخ .

---

[1] سورة عبس آية ۳۳:۳۷

[2] سورة النازعات آية ۳٤-۳٥

# الغاشية

يعني پټوونکي څرنګه چې ددې حالات به داسې وي چې انسان به ئې په سختيو کې پټ شي ددې امله ورته الغاشية ويل کيږي الله مونږ ته د قيامت د ورځې د يو حالت منظر په سورة غاشية کې ښکاره کوي او فرمايي :

هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ (1) وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ (2) عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ (3) تَصْلَى نَارًا حَامِيَةً (4) تُسْقَى مِنْ عَيْنٍ آنِيَةٍ (5) لَّيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ إِلَّا مِن ضَرِيعٍ (6) لَا يُسْمِنُ وَلَا يُغْنِي مِن جُوعٍ (7) وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ (8) لِسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ (9) فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ (10) .[1]

ترجمة : آيا راغلى دى بلکه په تحقيق راغلى دى تاته (اى محمده !) خبر د پټوونکې (د خلقو په سختيو خپلو سره چې **قيامت** دى) ځينې مخونه به په دغه ورځ (د قيامت) کې وېرېدونکي او ذليله وي تکليف ايستونکي رنځ را ښکوونکي به وي ننوځي به اور ډېر ګرم ته ور څښل کيږي به پرې له چينې ډېرې ګرمې څخه (په وقت د غلبې د تندې کې) نه به وي دوى ته طعام مګر له اغزي لرونکې ترخې ونې څخه چې نه به څربوي بدن (د دوزخي هغه ضريع) او نه دفع کوي هېڅ لوږه (له دوى نه هغه ضريع) ځينې مخونه به په دغې ورځې کې ښائسته او تازه وي پخپل کوښښ باندې (چې ئې کړى وي په دنيا کې) راضي خوشاله به وي (په آخرت کې) په جنت لوړ (اوچت) شانداره کې به وي .

[1] سورة الغاشية

## يوم الفصل

يعني د فيصلې ورځ او دې ورځې ته يوم الفصل وايي الله به د هرچا په مېنځ کې فيصله وکوي او ددېنه وروسته به د هيچا په چا باندې څه حق پاتې نشي الله فرمايي :

**إِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ مِيقَاتًا (١٧).** [1]

ترجمة : بېشکه ورځ د فيصلې (په مابين د خلقو کې **قيامت** دی) وقت (مقرر لپاره د ثواب او عقاب په حکم د رب ستا) .

## يوم الفتح

يعني د کاميابي ورځ څرنګه به چې رښتوني مؤمنان ټول پدې ورځ کامياب شي او د هغوی دښمنان به د ذلت او خواري سره مخ شي نو ځکه ورته د فتح ورځ ويل کيږي .

الله فرمايي :

**قُلْ يَوْمَ الْفَتْحِ لا يَنفَعُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِيمَانُهُمْ وَلا هُمْ يُنظَرُونَ(٢٩).** [2]

ترجمه : ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې په ورځ د فتح (**قيامت**) کې هېڅ نفع به ونه رسوي هغو کسانو ته چې کافران شوي دي ايمان راوړل د دوی (په دغه ورځ کې) او نه به دوی ته مهلت ورکړل شي او نه په دوی ته انتظار و کړل شی .

## القارعة

---

[1] **سورة النباء**
[2] **سورة السجدة**

يعني ټكونكې او دې ورځې ته القارعة وايي ځكه دا په خپلو حالاتو باندې زړونه ټكوي الله فرمايي :

الْقَارِعَةُ (1) مَا الْقَارِعَةُ (٢) وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْقَارِعَةُ (٣). [1]

ترجمة : (هغه) ټكوونكې (د زړونو **قيامت**) څه ده هغه ټكونكې (د زړونو **قيامت**) . او څه شي پوه كړى ئې ته چې څه ده هغه ټكوونكې (د زړونو **قيامت**) .

## الواقعة

يعني خامخا واقع كېدونكې څرنګه چې د هغې په واقع كېدلو كې هېڅ شك نشته نو ځكه ورته الواقعة ويل كيږي الله فرمايي :

إِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ (١)لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ (٢) . [2]

ترجمة : كله چې واقعه شي واقع كېدونكې (**قيامت**) نشته پېښېدلو د هغې لره هېڅ نفس دروغ كوونكى (او انكار كوونكى لكه چې به وو ترې منكر په دنيا كې) .

ددېنه بغير په قرآن كريم كې په مختلفو الفاظو د **قيامت** له ورځې نه تعبير شوى دى خو دا يې مشهور نومونه دي او نور ما ددې لپاره له حوالو سره ذكر نه كړل چې كتاب اوږديږي د مثال په توګه :

---

1 سورة القارعة
2 سورة الواقعة

- **يوم لابيع فيه ولا خله** (هغه ورځ چې نه به پكې اخيستل او خرڅول وي او نه به پكې ملګرتيا وي)
- **يوم لا ريب فيه** (هغه ورځ چې هېڅ شک يې په راتلو كې نشته)
- **يوم تجد كل نفس ما عملت** (هغه ورځ چې هر نفس به بيا مومي هغه چې ده يې عمل كړى وو)
- **يوم تبيض وجوه وتسود وجوه** (هغه ورځ چې پدې ورځ به ځينې مخونه تور او ځينې سپين شي)
- **يوم يجمع** (هغه ورځ چې مخلوقات به پكې را جمع كيږي)
- **يوم ينفع الصادقين صدقهم** (هغه ورځ چې رښتيا ويونكو ته به يې رښتيا فايده وكوي)
- **يوم يقول** (هغه ورځ چې كائنات به وايي او خبرې به كوي)
- **يوم نقول** (هغه ورځ چې مونږ به خبرې كوو او فيصله به كوو)
- **يوم ينفخ في الصور** (هغه ورځ چې په شپېلۍ كې به پوكى وكول شي)
- **يومكم هذا** (ستاسې دا ورځ )
- **يوم يأتِ** (هغه ورځ چې را به شي)
- **يومهم هذا** ( د هغوى ورځ دا)
- **يوم يحمى عليها في نار جهنم** (هغه ورځ چې هغه به د جهنم په اور كې ګرم كړل شي)
- **يوم يلقونه** (هغه ورځ چې دوى به ورسره مخامخ شي)
- **يوم كبير** (يوه لويه ورځ)
- **يوم أليم** (يوه دردناكه ورځ)
- **يوم محيط** (په ټولو خلكو او مخلوقاتو باندې احاطه كونكې ورځ)

- **يوم مجموع له الناس** (هغه ورځ چې خلک به ورته را ټوليږي)
- **يَوْمَ يَقُومُ الْحِسَابُ** (هغه ورځ چې حساب به به پکې کيږي)
- **يوم تشخص فيه الأبصار** (هغه ورځ چې سترګې به پکې شخې پاتې کيږي)
- **يوم تبدل الأرض غير الأرض** (هغه ورځ چې دا زمکه به پکې په بله ورځ بدله شي)
- **يوم الوقت المعلوم** (هغه ورځ چې په معلوم وخت کې راځي)
- **يوم يدعوكم** (هغه ورځ چې تاسې ور غواړي)
- **يوم نسير الجبال** (هغه ورځ چې غرونه به لاړ شي)
- **يوم النسيان** (هغه ورځ چې پدې ورځ کې به هرشی له خلکو هېر شي)
- **يوم نطوي السماء** (هغه ورځ چې پدې کې به اسمانونه سره ونغاړل شي)
- **يوم الرؤية** (د ليدلو ورځ)
- **يوم عقيم** (شنډه ورځ)

پدې ټولو الفاظو او ددېنه بغير په نورو مختلفو الفاظو د **قيامت** له ورځې نه په قرآن کريم کې تعبير شوی دی يو عالم الحافظ عبد الحق الاشبيلي په خپل کتاب العاقبة کې د **قيامت** د نومونو په اړه فرمايي :

**يوم القيامة، وما أدراك ما يوم القيامة يوم الحسرة** (د خفګان ورځ) **والندامة** (د پښېمانتيا ورځ) **يوم يجد كل عامل عمله أمامه** (هغه ورځ چې هر عمل کونکی به د خپل عمل سره مخامخ شي) **يوم الدمدمة** (د غصې ورځ) **يوم الزلزلة** (د زلزلې ورځ) **يوم الصاعقة**(د تندر ورځ) **يوم الواقعة**(د حادثې ورځ) **يوم الراجفة**(د جټکې او لړزې ورځ) **يوم**

**الرادفة** (د دوهمې شپېلۍ ورځ) **يوم الغاشية**(د پردې ورځ ) **يوم الداهية** (د بلا ورځ) **يوم الآزفة** (نېږدې ورځ) **يوم الحاقة** (د مصيبت ورځ د بلا ورځ) **يوم الطامة** (د مصيبت ورځ) **يوم الصاخة** (د چيغې ورځ) **يوم التلاق** (د مخامخ کېدلو ورځ) **يوم الفراق** (د جدايي ورځ) **يوم المشاق** (د سختي ورځ) **يوم القصاص** (د بدلې ورځ) **يوم ، يوم التناد** (د اواز ورځ) **يوم الأشهاد يوم المعاد** (د ګواهانو ورځ د بيا ور ګرځېدلو ورځ) **يوم المرصاد** (د څېړنې ورځ) **يوم المسائلة** (د پوښتنې ورځ) **يوم المناقشة** (د مناقشې ورځ) **يوم الحساب** (د حساب ورځ) **يوم المآب** (د رجوع ورځ) **يوم العذاب** (د عذاب ورځ) **يوم الفرار لو وجد الفرار**(که د تېښتې څه ځای وي نو د تېښتې ورځ) **يوم القرار إما في الجنة وإما في النار** (د قرار ورځ يا په جنت کې او يا په اور کې) **يوم القضاء** (د فيصلې ورځ) **يوم الجزاء** (د جزاء او بدلې ورځ) **يوم البكاء** (د ژړا ورځ) **يوم البلاء**(د بلا ورځ) **يوم الحشر**(د را ټولېدلو ورځ) **يوم النشر**(د اعمالنامو د خپرېدلو ورځ) **يوم الجمع**(د را جمع کېدلو ورځ) **يوم البعث**(د بيا را ژوندي کېدلو ورځ) **يوم العرض**(د ور وړاندې کېدلو ورځ) **يوم الوزن**(د تللو ورځ) **يوم الحق**(د حق او رښتيا ورځ) **يوم الحكم** (د فيصلې ورځ) **يوم الفصل** (د پرېکړې ورځ) **يوم عقيم**(شنډه ورځ) **يوم عسير**(سخته ورځ) **يوم قمطرير** (مشکله ورځ) **يوم عصيب**(سخته ورځ) **يوم النشور** (د خپرولو ورځ) **يوم المصير**(د ور ګرځېدلو ورځ) **يوم الدين** (د جزا ورځ) **يوم اليقين** (د يقين ورځ) **يوم النفحة** (د شپېلۍ ورځ) **يوم الصيحة** (د چيغې ورځ) **يوم الرجفة** (د ټکان ورځ) **يوم السكرة** (د بې هوښي ورځ) **يوم الفزع** (د غم ورځ) **يوم الجزع** (د فرياد ورځ) **يوم القلق** (د نا

قراري ورځ) **يوم الغرق** (د غرقېدلو ورځ) **يوم العرق**(د خولو ورځ) **يوم الميقات** (د مخامخ کېدلو ورځ) **يوم تخرج الأموات** (د مړو د را وتلو ورځ) **وتظهر العورات** (د عورتونو د ښکاره کېدلو ورځ) **يوم الانشقاق** (د قبرونو د شکېدلو ورځ) **يوم الانكدار** (د خړ کېدلو ورځ) **يوم الانفطار** (د شکېدلو ورځ) **يوم الافتقار** (د احتياج ورځ) **يوم الخروج** (د راوتلو ورځ) **يوم الانصداع** (د ماتېدلو ورځ) **يوم الانقطاع** (د قطع کېدلو ورځ) **يوم معلوم** (معلومه ورځ) **يوم موعود** (وعده کړل شوې ورځ) **يوم مشهود** (هغه ورځ چې خلک ورته را ټوليږي او حاضريږي) **يوم تبلى السرائر** (هغه ورځ چې پټ شيان پکې را ښکاره کيږي) **يوم تخرج الضمائر**(هغه چې پټ شيان پکې راوزي) **يوم لا تجزي نفس عن نفس شيئاً** (هغه ورځ چې يو نفس د بل نفس لپاره هېڅ نشي کولی) **يوم لا تملك نفس لنفس شيئاً** (هغه ورځ چې يو نفس د بل نفس لپاره د هېڅ شي مالک نه وي) **يوم يدعى فيه إلى النار**(هغه ورځ چې خلک پکې اور ته ور غوښتل کيږي) **يوم يسجن في النار** (هغه ورځ چې اور پکې ګرمول کيږي) **يوم تنقلب فيه القلوب والأبصار** (هغه ورځ چې زړونه او سترګې پکې آوړي) **يوم لا ينفع الظالمين معذرتهم** (هغه ورځ چې پدې کې ظالمانو ته د هغوی عذر هېڅ فايده نه کوي) **ولهم اللعنة** (هغه ورځ چې پدې کې په ظالمانو باندې لعنت وي) **ولهم سوء الدار**(هغه ورځ چې پدې کې د ظالمانو لپاره بد ځای وي) **يوم تقلب فيه الوجوه** (هغه ورځ چې مخونه پکې آوړي) **يوم لا يرتجى فيه إلا المغفرة** (هغه ورځ چې صرف د بښنې اميد پکې کيږي) **وأهول أسمائه، وأبشع ألقابه يوم الخلود** (سخت نوم او ګران لقب يې يوم الخلود دی) **وما أدراك ما يوم الخلود** (ته څهٔ خبر يې

چې يوم الخلود څه شی ده) **يوم لانقطاع لعقابه** (هغه ورځ چې عذاب يې نه پرې کېدونکی دی) **ولا يكشف فيه عن كافر ما به** (هغه څۀ چې په کافر باندې دي هغه نه ترې لرې کيږي) **فنعوذ بالله، ثم نعوذ بالله من بلائه، وسوء قضائه بكرمه، ورحمته**(1).

## د قيامت شروع (لمړی شپېلی)

د **قيامت** شروع به د حضرت اسرافيل له اولې شپېلی نه کيږي حضرت اسرافيل چې تيار امر ته منتظر دی چې څه وخت ورته امر وشي په هماغه لحظه کې به په شپېلی کې پوکی وکوي او ددې پوکي سره به ټول کائنات بې هوښه وغورځيږي بغير د هغه نه چې الله ورته اراده کړې وي چې هغه به نه بې هوښه کيږي ددې پوکي په اړه الله فرمايي :

**وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَنْ شَاءَ اللَّهُ ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَى فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنْظُرُونَ.** [2]

ترجمة : او پو کل به و کړل شي په صور (شپيلی) کې پس بېخوده مړه به شي هر هغه چې په آسمانونو کې دي او هر هغه چې په ځمکه کې دي مګر هغه څوک چې اراده وفرمائي الله (د نه وژلو د هغه) بيا به وپوکل شي په هغه (صور) کې بل ځلې پس ناڅاپه دغه خلق به (چې مړه وو ټول) ولاړ وي (منتظر وي چې څه راباندې کيږي) .

حضرت عبد الله بن عمر فرمايي :

---

1 كتاب العاقبة في ذكر الموت والآخرة ص 250
**2** سورة الزمر آية ٦٨

لينفخن في الصور والناس في طرقهم وأسواقهم ومجالسهم حتى إن الثوب ليكون بين الرجلين يتساومان فما يرسله أحدهما من يده حتى ينفخ في الصور وحتى إن الرجل ليغدو من بيته فلا يرجع حتى ينفخ في الصور. [1]

ترجمة : په شپېلۍ کې به پوه کړل شي (خلقو ته به له مخکې معلومه نه وي او نه به څه خبر ورکول کيږي يو دم به پکې پوه کړل شي) او خلق به په خپلو لارو ، بازارونو او مجلسونو کې وي تردي چې يوه جامه به د دوو کسانو په لاس کې وي او په قيمت کې به يې سره خبرې کوي (چنې به وهي) په هغوی کې به يې يو پرې نه ږدي چې په شپېلۍ کې به پوکی وکول شي او تردې چې يو کس به له کور نه وتلی وي بېرته به ونه ګرځي چې په شپېلۍ کې به پوکی وکول شي .

رسول الله ﷺ فرمايي : إن الناس يصعقون فأكون أول من يفيق فإذا موسى باطش بجانب العرش فلا أدري أكان فيمن صعق فأفاق قبلي أو كان ممن استثنى الله . [2]

ترجمة : خلق به ټول بې هوښه کيږي بيا به زه اول را بيداريږم چې ګورم موسى به د عرش يو طرف نيولی وي ولاړ به وي زه نه پوهيږم چې دی به په هغه ډله کې وي چې بې هوښه شوی به وي او لما نه به وړاندې را بيدار شوی وي او که په هغه کسانو کې به وي چې الله به له بې هوښه کېدلو څخه مستثنى کړی وي .

---

[1] رواه الطبري
[2] رواه البخاري ومسلم

يو بانډچي له رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکوله يا رسول الله ﷺ دا الصور څه شی دی؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : دا ښکر دی پوکی پکې کيږي .[1]

پدې شپېلۍ کې به حضرت اسرافيل پوکی ورکوي او همدا مشهوره ده او ځينې علماوو پدې اړه د اجماع دعوه کړيده او په ځينې احاديثو کې وربانديې تصريح شويده .[2]

او رسول الله ﷺ ددې خبر ورکړی دی چې له کوم وخت نه دا دنيا جوړه شويده له هغه وخت نه د شپېلۍ پرښته پوکي ورکولو ته تياره ده تر **قيامت** پورې به تياره وي او د الله له لوري نه به د پوکي کولو د امر انتظار وباسي حضرت ابو هرېره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إن طرف صاحب الصور منذ وكل به مستعد ينظر نحو العرش ، مخافة أن يؤمر قبل أن يرتد إليه طرفه كأن عينيه كوكبان دريان .**[3]

ترجمة : بېشکه نظر د شپېلۍ د پرښتې د عرش لور ته دی تيار دی عرش ته ګوري ددېنه وېريږي چې ده ته به د پوکي کولو امر وشي او د يو نظر د رپ په اندازه به دده څخه د امر په منلو کې تاخير وشي سترګې يې دواړه لکه ځلېدونکي ستوري داسې خلاصې د عرش په لور نيولې دي .

د اکثرو علماوو همدا نظر دی چې په شپېلۍ کې به دوه پوکي ورکول کيږي په يو سره به ټول کائنات بې هوښه وغورځيږي او په دوهم ځل پوکي سره به ټول خلق را پاڅيږي او نيغ به ودريږي

[1] سنن الترمذي
[2] فتح الباري
[3] المستدرک

ګوري به چې مخکې څه کيږي لکه په پورتني آيت کې چې تېر شول .

ځينې علماء وايي چې دا به درى شپېلى وي په اوله شپېلۍ به خلق وډار شي په دوهمه به بېهوښه شي او په دريمه به بيا را پاڅيږي ځکه په يوه آيت کې د شپېلۍ سره وېره ياده کړل شوېده الله فرمايي :

**وَيَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّورِ فَفَزِعَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الأَرْضِ إِلا مَنْ شَاءَ اللَّهُ.** [1]

ترجمة : او کله چې په شپېلۍ کې پو کړل شي نو وبه ډار شي هغه چې په اسمانونو او هغه چې په زمکه کې دي بغير د هغه کسانو نه چې د الله خوښه وي (چې هغوى د نه ډاريږي)

خو هغه علماء چې ددې قائل دي چې دوه شپېلۍ دي هغوى فرمايي چې دا وېره او بې هوښه غورځېدل دواړه له همدې اولې شپېلۍ سره دي او له دوهمې سره بېرته را پورته کېدل دي .

د پورتنيو خبرو معنى دا چې کله الله په زمکه باندې د ټولو ژونديو شيانو مړه کول وغواړي نو اسرافيل ته به امر وکوي چې هغه په شپېلۍ کې يو پوکى وکوي د هغه سره به ټول مخلوقات بې هوښه و غورځيږي او مړه به شي بيا به څه زمانه پدې حالت کې پاتې شي څلوېښت رسول الله ﷺ ياد کړل خو دا يې ونه ويل چې څلوېښت ورځې ، که مياشتې ، که کلونه او که بل څه بيا به الله باران نازل کړل هغه باران چې دې هډوکو ته ورسيږي نو په هغه باندې غوښه را شنه کېدل

[1] سورة النمل آية ۸۷

شروع شي لکه څنګه چې الله اول ځل دا مخلوقات دا انسانان پيدا کړي وو په دوهم ځل هم هماغه شان وربانديې قادر دی او په هرشي بانديې قادر دی داسې به بيا هم بدنونه جوړ شي او بل ځل به اسرافيل ته امر وکول شي هغه به په شپېلۍ کې پوکی وکوي ټول خلق به له قبرونو څخه را پاڅيږي او د محشر ميدان ته به روان وي .

پوښتنه دلته داده چې دا خلق به د شپېلۍ په اواز سره څنګه مړه کيږي؟

ددې پوښتنې په ځواب کې علماوو ډېر زيات تحقيقات کړي دي زه د خپل کتاب د لنډوالي په نظر کې له لرلو سره سره د هغوی ليکلي څه معلومات په مختصره توګه لتاسې سره شريکوم تر هرڅه د مخه :

## اواز څه شی دی؟

يوه مېخانيکي څپه ده چې د فشار په اهتزاز سره په يوه جامد، اوبلن يا ګازي محيط کې په بېلابېلو فريکوينسيانو کې رامېنځ ته کېږي چې د اورېدو وړ دی دا د غوږ په پرده بانديې ولګيږي او دا اهتزاز يې دماغ ته لاړ شي او هلته تحليل کيږي چې بيا ترېنه يا لذت اخيستل کيږي او يا ترېنه وېره پيدا کيږي او بيا دماغ پوهيږي چې هرڅه ورته په کار وي بدن ته حکم صادريږي چې هغه وکوي او کله چې ددې اواز زور زيات وي نو په بدن بانديې په لويه پيمانه بانديې ظاهري او نفسي اثرات کوي.

علماء فرمايي اواز په Decibel (dB) سره پيمانه کيږي هغه اواز چې مونږ يې په عادي توګه آورو د 120 dB نه بايد کم وي چې تردې زيات شي نو په غوږ کې ورسره درد پيدا کېدلی شي او که دا

اواز 140 dB شي نو د غوږ پرده شکوي او که 150 dB شي نو د انسان په سينه تاثير کوي او انسان په تنفس کې د تکليف احساس شروع کوي او که 200 dB شي نو بيا د سږي د چاودېدلو خطر دی او پدې توګه بيا ټول بدن متاثر کوي چې بيا په بدن کې دا تحولات د زړه او دماغو په عمل باندې تاثير کوي او بالآخره د آوريدونکي د مرګ سبب کيږي او وجه يې دا وي چې اواز کله ډېر تيز وي هغه په خپل ماحول کې يو ډول داسې کيفيت پيدا کوي چې هغه انسان اوري د انسان په بدن کې زخمونه پيدا کوي او پدې توګه انسان سوزي او له مينځه ځي ددې وجې نه خو تيز اواز نه يوازې په غوږ ونو بلکه حتی په هډوکو ، ځرمن ، او عصبي نظام کوم چې په انسان کې دی تاثير کوي او هغه علماء چې پدې اړه يې څېړنې کړي دي هغوی وايي چې تر اوسه پورې د خلقو له علم نه د تېز اواز رښتونی تاثير پټ دی او تر اوسه پورې دوی دا نه دي پيدا کړي چې دا ډېر تېز اواز انسان ولې وژني؟ او څنګه د هغه بدن متاثر کوي؟ خو دا خبره خو هرچا منلې ده چې تيز اواز يو انسان وژلی شي .

## تيز اواز لرونکي سلاح

پداسې حال کې چې سائنس ډېر مخ په وړاندې ځي نو اوس د داسې سلاح د جوړولو تجربې هم روانې دي چې هغه به انسان په مرمی نه بلکه په خپل اواز سره مړ کوي او يا داسې متاثر کوي چې له مقابلې څخه لاس واخلي خو اوس تر اوسه پورې دې تجربې ته څوک نه دي رسېدلي چې دا به څنګه سلاح وي چې داسې تېز اواز به وباسي چې مخالفين به متاثر کړي او د سلاح چلونکی او د هغه ملګري به ترېنه محفوظ پاتې شي يعني دوی دې نتيجې ته رسېدلي دي چې په تيز اواز سره کېدای شي دښمن متاثر شي خو دا تيز اواز به وېستل کيږي له

کوم شي نه؟ او څنګه به ترې خپل کسان ساتل کيږي او د ښمن به پرې متاثر کيږي او داسې نور مشکلات په مخه کې دي چې تر اوسه دا سلاح په استعمال کې نشته په هر صورت ددې کوښښ روان دی چې داسې سلاح جوړه شي لکن کار به څنګه کوي او څنګه به دښمن متاثر کوي ددې لپاره سمه لاره نشي راويستلی خو الله چې په هرشي باندې قادر دی په همدې ډول سلاح سره يې په زرګونو کاله وړاندې خلق وژلي دي زما لوستونکي ته به د عاديانو د هلاک قصه ياده وي چې هغوی الله څنګه هلاک کړل؟ حضرت صالح يې د لارښوونکي په ډول ور ولېږلو او د اوښې معجزه يې ورته ورکړه چې هغه اوښه له کانې څخه پيدا شوې وه او دومره شودې يې کولې چې د ټول قوم بس کېدلې خو دومره اوبه يې هم څښلې چې يوه ورځ به د هغې د اوبو وار وو او يوه ورځ به په چينه باندې د قوم د ابو وار وو قوم بغاوت وکولو او په اوښه پسې را ووتل او هغه يې مړه کړه او د حضرت صالح او د هغه د رسالت توهين يې وکولو الله وربانديې تيز اواز نازل کړو او ټول يې هلاک کړل .

الله فرمايي :

وَأَخَذَ الَّذِينَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دِيَارِهِمْ جَاثِمِينَ . [1]

ترجمة : او ونيول هغو کسانو لره چې ظلم ئې کړی وو پر ځانونو خپلو (په کفر سره) چغې (هيبتنا کې د جبريل) بيا ګهيځ (سحر) و ګر ځېدل دوی په کورونو خپلو کې مړه وچ کلک پر ځنګنونو پرمخې پراته .

په بل ځای کې الله فرمايي :

[1] سورة هود آية ٦٧

إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَاحِدَةً فَكَانُوا كَهَشِيمِ الْمُحْتَظِرِ . [1]

ترجمة : بېشكه ولېږلو مونږ پر هغو باندى غږ يو (د جبريل) نو شول دوى لكه وچ مات شوى (ټوټې ټوټې خس خاشاک واښه شپول جوړوونكى) .

په بل ځاى كې الله فرمايي : فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ بِالْحَقِّ فَجَعَلْنَاهُمْ غُثَاءً فَبُعْدًا لِلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ . [2]

ترجمة : پس ونيول دوى چغې د هلاک په حق (او عدل) سره پس (هلاک شول نو) وګرځول مونږ دوى شاوړي (خس خاشاک د سيلاب) پس لرې والى دى قوم ظالمانو ته (له رحمته د الله ) .

نو داسې چې الله په يو وخت كې ثموديان په تيز اواز سره هلاک كړي وو يو وخت به داسې راشي چې اسرافيل ته به امر وكوي چې هغه په شپېلۍ كې پوكى وكوي نو د هغې د شپېلۍ اواز به دومره تيز وي چې ټول ژوندي به پرې هلاک شي او دا به اوله شپېلۍ وي .

## دوهمه شپېلۍ

لكه مخكې چې تېر شول د اولې شپېلۍ سره به ټول ژوندي مخلوقات مړه شي بغير د هغه نه چې الله وساتي نو ددې لپاره چې ټول خلک د حشر لپاره را پاڅيږي نو اسرافيل به دوهم ځل په شپېلۍ كې پوكى وكوي پدې برخه كې به خپل بحث په دريو ټكو باندې را ونغاړم .

الف : دوهمه شپېلۍ

---

[1] سورة القمر آية ٣١
[2] سورة المؤمنون آية ٤١

ب : په بيا را ژوندي کېدلو دلائل

ج : څوک چې په ځنګه حالت کې وفات شي په هماغه حالت کې به يې الله بېرته را پورته کوي .

## د وهمه شپېلۍ

لکه مخکې چې په يو حديث کې تېر شول کله چې اول ځل حضرت اسرافيل په شپېلۍ کې پوکی وکوي نو ټول کائنات به بې هوښه وغورځيږي هغه شپېلۍ به پداسې حالت کې پوه کړل شي چې هېڅوک به ترينه خبر نه وي چې دا به اوس پوکول کيږي حتی چې په يو حديث کې تېر شول خلق به په خپلو کارونو باندې لګيا وي دوه کسان به وي جامه به يې په لاس کې وي د هغې د قيمت په اړه به خبرې کوي او يو کس به وي له کوره به په کوم شي پسې د لږ وخت لپاره وتلی وي او بېرته به لا نه وي راغلی او خلق به په لارو کې ، په کوڅوکې په بازارونو کې وي او په مجلسونو کې به وي يودم به د اسرافيل د شپېلۍ اواز پرې ولګيږي او هلاک به شي بيا به دا زمکه بېرته په هغه ډول پاتې شي لکه مخکې چې وه چې الله انسانان نه وو پيدا کړي هغه ډول وخت به شي نه به څوک وايي چې دا زما دی او نه به څوک د بادشاهي دعوه کوي هرڅه به شړ شي او بادشاهي به يوازې او يوازې هغه ذات لره شي چې نه مړ کيږي او نه وربانديې وخت تيريږي او نه يې غفلت شته خو دا زمکه به تر څومره وخته پورې بيا داسې پاتې وي دا هغه څه دي چې علم يې يوازې الله لره دی پدې اړه له حضرت ابي هريره څخه روايت شوی دی چې رسول الله ﷺ فرمايل : **ما بين النفختين أربعون . قالوا : يا أبا هريرة أربعون يوما ؟ قال : أبيت قالوا أربعون شهرا ؟ قال : أبيت قالوا : أربعون سنة ؟ قال : أبيت . ثم ينزل الله من السماء ماء فينبتون**

كما ينبت البقل . قال : وليس من الإنسان شيء إلا يبلى إلا عظما واحدا وهو عجب الذنب ومنه يركب الخلق يوم القيامة. [1]

ترجمة : د دوو شپېليو په مينځ کې به څلوېښت وي صحابه وو پوښتنه وکوله يا اباهريره رسول الله ﷺ څلوېښت ورځې يادولې؟ ده وويل : زه نشم ويلی بيا يې ورته وويل: رسول الله ﷺ څلوېښت مياشتې يادولې؟ ده وويل : زه نشم ويلی بيا يې ورته وويل : څلوېښت کاله يې يادول؟ ده بيا وويل : زه څه نشم ويلی بيا به الله له اسمان څخه اوبه را نازلې کړي او داسې به را شنه شي لکه ګياه چې را شنه کيږي بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : په انسان کې چې هرڅه شی دي ټول خاورې کيږي مګر يو هډوکی چې هغه ته عجب الذنب ويل کيږي (پدې اړه به يوه څېړنه لږ وروسته ستاسې خدمت ته وړاندې کړم دا يو هډوکی دی چې د شا تېر په آخري برخه کې وي ډېر وړوکی دی) او له همدې نه به انسان د **قيامت** په ورځ جوړيږي .

پدې وخت کې به اسرافيل بل ځل په شپېلۍ کې پوکی وکوي يو اواز کونکی به اواز وکوي **يا أيتها العظام النخرة، يا أيتها اللحوم المتناثرة! قومي لفصل القضاء أمام الله رب العالمين** (اې ورستو شويو هډوکو، اې خپرو شويو غوښو ، پاڅېږئ د الله چې د عالميانو رب دی په وړاندې د فيصلې لپاره ودرېږئ) په ابن ماجة کې روايت دی چې اول را پورته کيږي هغه به زمونږ رسول الله ﷺ وي چې کله سترګې مبارکې خلاصې کړي د ملائکو صف به يې د تشريفاتو لپاره دريدلی وي اول خبره به يې دا وي چې وبه

[1] رواه البخاري

فرمايي : **كيف حال أمتي يا جبريل**؟ (جبريل : زما د امت څه حال دی؟) او ددېنه وروسته به بيا ټول خلق له قبرونو څخه را پاڅيږي او د حشر ميدان ته به په منډه منډه روان شي سر تور سرونه لوڅې پښې به وي ، د قبرونو ګردونه به پرې پراته وي ، ټول به منډې وهي ، هېڅوک به له چا سره خبرې نه کوي ، خلق به يوې بلې خوا ته په غفلت کې ګوري ، حيران به وي ، غمګين به وي ، له ځانه به پوښتنه کوي هغه چې مونږ وربانديې ژوند کاوه همدا دنيا وه؟ غرونه ټوټې شوي دي ... نهرونه وچ شوي دي ... بحرونه سوزېدلي دي ... زمکه هغه نه ده کومه چې دوی لېدلې وه ... نه چېرته د خلاصي ځای شته او نه چېرته د تېښتې لاره شته .. هغه **قيامت** چې مونږ به يې يوازې خبرې آورېدلې نن واقع شو .. هرڅوک د خپل ځان په غم کې دي .. او د ړومبي ځل لپاره ټول انسانان په دنيا کې په يو ځای کې سره ټوليږي .. هېڅوک نه پوهيږي چې له ده سره به اوس د الله په وړاندې څه معامله کيږي

الله د دوی ددې حالت په اړه فرمايي : **وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَإِذَا هُم مِّنَ الْأَجْدَاثِ إِلَى رَبِّهِمْ يَنسِلُونَ (51) قَالُوا يَا وَيْلَنَا مَن بَعَثَنَا مِن مَّرْقَدِنَا هَذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمَنُ وَصَدَقَ الْمُرْسَلُونَ (52) إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً فَإِذَا هُمْ جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ (53) فَالْيَوْمَ لَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا وَلَا تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (54)** .[1]

ترجمة : او بيا به پوکی وکړل شي په صور (شپېلې) کې پس ناڅاپه دوی له قبورو څخه په طرف د رب خپل به منډې وهي ځغلي . اووائي به دوی ای هلاک خرابي ده مونږ ته چا راپاڅولو له ځايونو د خوبونو زمونږ څخه . دا هغه (دوهم ژوندون) دی چې وعده ئې کړی وه رحمن او رښتيا ويلی وو رسولانو . نه به وي (دغه نفخه

[1] **سورة يس**

الثانيه) مګر چغه يوه (چې وشي نو راژوندي به شي دوی ټول) پس ناڅاپه دوی ټول په نزد زمونږ به حاضر کړل شوي وی . پس نن ورځ به ونه کاوه شی ظلم په هيڅ نفس باندی د هيڅ څيز او نه به جزاء درکوله کيږی تاسې ته مګر (جزاء) د هغو (اعمالو) چې وئ تاسې چې کول به مو (له خير او شر په دنيا کې) .

په بل ځای کې الله فرمايي :

فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ فَذَلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ . [1]

ترجمة : کله چې پو کړه شی په صور (شپيلی) کې نو د هغه (وقت د) پو کی په دغه ورځ کې ورځ سخته ده .

په بل ځای کې الله فرمايي :

وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِنْ مَكَانٍ قَرِيبٍ * يَوْمَ يَسْمَعُونَ الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ ذَلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ . [2]

ترجمة : او واوره غوږ کيږده (ای محمده) هغه ورځ چې آواز وکړي آواز کوونکی (اسرافيل) له ځای نژدې نه هغه ورځ چې واوري (دغه خلق) سخته چغه د (اسرافيل) په حقه سره دا (ورځ د آواز) ورځ د وتلو ده (له قبورو) نه .

په بل ځای کې الله فرمايي :

يَخْرُجُونَ مِنَ الأَجْدَاثِ كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ مُنتَشِرٌ . [3]

---

[1] سورة المدثر آية ٨-٩
[2] سورة ق آية ٤١-٤٢
[3] سورة القمر آية ٧

ترجمة : راوبه وځي دوی له قبرونو څخه ګواکي دوی به ملخان مچان وی خواره واره چې تلوار کوونکی به وي په لوري د بلونکي خپل .

په بل ځای کې الله فرمایي : كَأَنَّهُمْ إِلَى نُصُبٍ يُوفِضُونَ .[1]

ترجمة : لکه چې دوی په طرف د نښو چابک ځغلي .

## له قبرونو را پورته کېدل

په اسلام کې دا عقیده چې انسانان به له مرګه وروسته بېرته بیرته ټول را ژوندي کیږي او د الله حضور ته به د حساب او کتاب لپاره حاضریږي بنیادي او اساسي عقید ګڼله کیږي او ټول مؤمنان په کلکه سره وربانديې ایمان لري او ترڅو چې پدې عقیده باندې ایمان رانه وړي مؤمن کېدلی نشي لکن دا عقیده تر نورو زیاته د مشرکانو او کفارو لپاره د شک ځای وه او ددې منل ورته ډېر ګران او سخت کار ښکاره کېدو او په خوله به یې هم ویل :

أَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَاباً وَعِظَاماً أَئِنَّا لَمَبْعُوثُونَ .[2]

ترجمة : (او وائي منکران) آیا هر کله چې مړه شو او شو خاورې او (وراسته) هډو کي آیا مونږ به خامخا بیا ژوندي راپاڅول کیږو؟

نو د هغه وخت د تقاضا مطابق په قرآن کریم کې هم ددې عقیدې په اثبات باندې پوره دلا ئل موجود دي او هغه کسان چې ددې عقیدې څخه انکار کوي په هغوی باندې پوره رد شوی دی او ددې

[1] سورة المعارج آية ٤٣
[2] سورة الصافات آية ١٦

لپاره چې د انسان ذهن ته دا خبره او عقیده ور ننوزي قرآن کریم په مختلفو طریقو سره پدې خبره ټینګار کړی دی ترڅو انسانان وربانديې پوه شي او یقین پرې وکوي اول الله صرف ددې خبر ورکوي چې تاسې به له مرګ نه وروسته بېرته را ژوندي کېږئ په لاندې ډول :

قرآن کریم ددې خبر ورکړی دی چې ټول مړي به پس له مرګه بېرته را ژوندي کیږي الله فرمایي : **ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ** .[1]

ترجمة : بیا بېشکه تاسې په ورځې د **قیامت** کې بیا ژوندي راپاڅول شئ (له قبورو) لپاره د جزاء .

په بل ځای کې الله فرمایي :

**حَتَّى إِذَا جَاء أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ارْجِعُونِ* لَعَلِّي أَعْمَلُ صَالِحاً فِيمَا تَرَكْتُ كَلَّا إِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ قَائِلُهَا وَمِن وَرَائِهِم بَرْزَخٌ إِلَى يَوْمِ يُبْعَثُونَ.**[2]

ترجمة : تر هغه پورې کله چې راشی یو د دوی ته (اسباب د) مرګ نو وبه وائی ای ربه ځما بیرته وګرځوه ته ما (دنیا ته) ښائي چې زه عمل و کړم نېک په هغه څیز کې چې بېرته پریښي دي ما (په دنیا کې نو فرمائی الله چې) نه دي داسې (چې ته بېرته دنیا ته وګرځېدی شې ایمان او صالح عمل ته) بېشکه دغه د رجعت خبره داسې چټې (بېکاره) خبره ده چې دی ویونکی د هغې دی او په مخ کې د دوی دی برزخ (پرده د قبر ده چې ئې

---

[1] سورة المؤمنون آیة ١٦
[2] سورة المؤمنون آیة ٩٩-١٠٠

نه پریږدي رجوع ته) تر هغې ورځې پورى چې بیا ژوندي راپاڅولی کیږي .

په بل ځاى کې الله فرمايي :

و َأَقْسَمُواْ بِاللّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لاَ يَبْعَثُ اللّهُ مَن يَمُوتُ بَلَى وَعْداً عَلَيْهِ حَقّاً وَلـكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لاَ يَعْلَمُون .[1]

ترجمة : او قسمونه کوى دوى پر الله په سختو غلیظو قسمونو خپلو چې بیا به نه کړى ژوندي الله هغه څوک چې (یو ځلې) مړ شی ، (الله فرمائي په تردید د دوى کې چې ولې به ئې ژوندي نه کړي) بلکه ژوندي به ئې کړي (ځکه چې وعده ئې کړې ده) په داسې وعده کولو چې لا زمه ده پرې (وفا ئې تفضلا وعده) حقه ولېکن ډیر د خلقو نه پوهیږي (په دغه بعث بعد الموت) .

په بل ځاى کې الله فرمايي : َزعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن لَّن يُبْعَثُوا قُلْ بَلَى وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ وَذَلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِير .[2]

ترجمة : دعوى کوي هغه کسان چې کافران شوي دي چې له سره به بیا ژوندي راپورته نه کړل شي دوى وواىه (اى محمده دوى ته چې) هو بیا به ژوندي راپورته کړي شئ قسم دى په رب ځما چې خامخا ژوندي پورته به کړل شئ هرومرو (خامخا) تاسې (پس له مرګه) بیا خامخا خبر به کړل شئ تاسې هرومرو (خامخا) په هغه څه چې کړي دي تاسې په دنیا کې او دا (ژوندي پاڅول جزاء ورکول) په الله باندې ډیر اسان دي .

په بل ځاى کې الله فرمايي :

[1] سورة النحل آية ٣٨
[2] سورة التغابن آية ٧

**وَمَا مِن دَآبَّةٍ فِي الأَرْضِ وَلاَ طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلاَّ أُمَمٌ أَمْثَالُكُم مَّا فَرَّطْنَا فِي الكِتَابِ مِن شَيْءٍ ثُمَّ إِلَى رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ .** [1]

ترجمة : او نشته هېڅ (حيوان خوځيدونكى تلونكى په ځمكه كې او نه هېڅ مارغه چې الوځي په دواړو وزرونو خپلو (په هوا كې) مګر (ټول سره) امتونه (مخلوقات) دي په شان ستاسې نه دي پرېښي مونږ په كتاب (لوح محفوظ) كې هېڅ شى (بلكه ګرد (ټول) ليكلي دي مونږ) بيا به (دا ګرد (ټول)) رب خپل ته ورټول كړل شي (د حساب او جزاء دپاره) .

په بل ځاى كې الله فرمايي : **وَهُوَ الَّذِي ذَرَأَكُمْ فِي الْأَرْضِ وَإِلَيْهِ تُحْشَرُونَ.** [2]

ترجمة : او دغه (الله ) هغه ذات دى پيدا كړي (خواره كړي) ئې يئ تاسې په ځمكه كې او خاص هم دغه (الله ) ته به ورجمع كړل شئ په **قيامت** كې .

دا پورتني او داسې نور آيتونه په ښكاره سره انسان ته خبر وركوي چې دوى به ټول له مرګ نه وروسته را ژوندي كول كيږي او د الله حضور ته به وړاندې كيږي هغه ځوک چې نېكان وي هغوى ته به د هغوى د عملونو اجر وركول كيږي او هغه كسان چې بد عمل وي هغوى ته به د دوى د عملونو سزا وركوله كيږي .

## دلائل

الله پدې خبره چې په **قيامت** كې به ټول خلق بېرته را ژوندي كول كيږي دلائل پيش كوي چې په هغه دلا

---

[1] سورة الانعام آية ٣٨
[2] سورة المؤمنون آية ٧٩

ئلو کې هرڅوک غور او فکر وکوي نو دې مطلب ته رسيږي چې تر مرګ وروسته را پورته کېدل حق دي او د الله په قدرت کې شته چې انسانان را ژوندي کړي الله داسې دلائل د قرآن کريم په مختلفو ځايونو کې پيش کړي دي يوه بېلګه يې په سورة واقعه کې ده هلته الله فرمايي : قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ* لَمَجْمُوعُونَ إِلَى مِيقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ* ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ*لَآكِلُونَ مِن شَجَرٍ مِّن زَقُّومٍ* فَمَالِؤُونَ مِنْهَاالْبُطُونَ* فَشَارِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيمِ* فَشَارِبُونَ شُرْبَ الْهِيمِ* هَذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّينِ* نَحْنُ خَلَقْنَاكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُونَ* أَفَرَأَيْتُم مَّاتُمْنُونَ* أَأَنتُمْ تَخْلُقُونَهُ أَمْ نَحْنُ الْخَالِقُونَ*نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ*عَلَى أَن نُّبَدِّلَ أَمْثَالَكُمْ وَنُنشِئَكُمْ فِي مَا لَاتَعْلَمُونَ* وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْأَةَ الْأُولَى فَلَوْلَا تَذكَّرُونَ* أَفَرَأَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ* أَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُ أَمْ نَحْنُ الزَّارِعُونَ* لَوْ نَشَاء لَجَعَلْنَاهُ حُطَاماً فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُونَ* إِنَّا لَمُغْرَمُونَ* بَلْ نَحْنُ مَحْرُومُونَ* أَفَرَأَيْتُمُ الْمَاء الَّذِي تَشْرَبُونَ*أَأَنتُمْ أَنزَلْتُمُوهُ مِنَ الْمُزْنِ أَمْ نَحْنُ الْمُنزِلُونَ* لَوْ نَشَاء جَعَلْنَاهُ أُجَاجاً فَلَوْلَا تَشْكُرُونَ*أَفَرَأَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ* أَأَنتُمْ أَنشَأْتُمْ شَجَرَتَهَا أَمْ نَحْنُ الْمُنشِؤُونَ* نَحْنُ جَعَلْنَاهَاتَذْكِرَةً وَمَتَاعاً لِّلْمُقْوِينَ* فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ . [1]

ترجمة : ووايه ته (اى محمده ! دوى ته) بېشکه چې ړومبني (خلق) او وروستني (خلق) به خامخا ګرد به ټول کړل شي وقت د ورځې معلومې ته (چې قيامت دى) . بيا به بېشکه تاسې اى ګمراهانو دروغ ويونکيو خامخا خوړونکى به يئ (په دوزخ کې) له ونې د زقوم څخه پس ډک کوونکي به يئ له هغې (ونې) څخه دګېډو خپلو لره . پس څښونکي به يئ تاسې په هغه (زقوم خوړلي شوي) باندې له اوبو سوځوونکيو څخه پس څښونکى به يئ (په شان) د څښلو د اوښانو ډېرو تږو . دا (خوړل او

---

[1] سورة الواقعة آية ٤٩:٧٤

څښل چې ذکر شول) میلمستیا د دوی ده په ورځ د جزاء انصاف کې . مونږ پیدا کړي یئ تاسې (له نشتوالی څخه) نو ولی تاسی باور یقین نه کوئ په ژوندون پس له مر ګه . آیا وینئ تاسې (چې خبر راکړئ له) هغه اوبو څخه چې څڅوئ ئې تاسې (پر رحمونو د ښځو خپلو کې) آیا پیدا کوئ تاسې له دغه (مني نه بشر که یو مونږ پیدا کوونکي (د ټولو موالیدو بلکه ته ئې خالق ای الله ) . مونږ مقدر کړی مو دی په منځ ستاسې کې (ای مخلوقاتو) مرګ . او نه یو مونږ عاجز چې تیری رابانديې و کړي له دې نه چې پیدا کړو بدل ستاسې (نور خلق) پشان ستاسې او مونږ راپورته پیدا کړو تاسې په هغو (صورتونو سره) چې تاسې به علم نه پرې لرئ .او خامخا په تحقیق پوهېدلي یئ تاسې په پیدا کیدلو ړومبنیو باندې نو ولې نه یادوئ پند نه اخلئ (د دغه الله په قدرت او یقین نه کوئ په بیا پیدا کولو باندې) . آیا پس وینئ (چې خبر راکړئ ماته) هغه چې کرئ ئې تاسې . آیا تاسې زرغونوئ هغه (کرلي شوي) که مونږ یو زرغونوونکي (پخوونکي د هغه بلکه ته ئې ای الله ) . که اراده وفرمایو مونږ نو خامخا وبه ګرځوو مونږ هغه (کښت (فصل) لره چې کرلی دی تاسې بې دانه بې حاصله) وچ واښه ذره ذره نو وبه ګرځئ تاسې تعجب کوونکی او ویونکی د دې خبرې بیشکه مونږ خامخا تاوان کړی یو (په زراعت خپل کې) بلکه مونږ محروم بې برخې کړل شوي یو (له رزق نه) . آیا پس وینئ (چې خبر راکړئ) تاسې اوبه هغه چې څښئ ئې تاسې (او ژوند پرې ترلی دی) آیا تاسو نازلی کړې دي هغه لطیفې خوږې (اوبه) له سپینو وریځو څخه که مونږ نازلوونکي راښکته کوونکی یو (د هغو اوبو ؟ بلکه ته ئې ای الله !) . که اراده فرمایو مونږ نو وبه ګرځوو دا (اوبه) تروې ترخې نو ولې شکر نه وباسئ (تاسې په دغو نعماؤ) . آیا پس وینئ (چې خبر راکړئ) تاسې د اور هغه نه چې بلوئ ئې تاسې (له هر راز (قسم) محروقاتو نه) آیا تاسې

پیدا کړي ده ونه د دي (اور) او که مونږ پیدا کوونکي یو (د هغې ونې او د ټولو مخلوقاتو ؟ بلکه ته ئې ای الله !) . مونږ ګر ځولی مو دی دغه (دنیوي اور) تذکره یادول (د دوزخ) . او (ګرځولی دی مونږ دا اور نفعمن او) په کار راتلو ته دپاره د مسافرانو محتاجانو بی وزلو . نو و کړه نسبت د پاکی نامه د رب خپل ته چې له ګردو (ټولو) څخه ډیر لوی دی (او تل شاکر اوسه په دغو نعماوو ئې) .

په پورتنیو آیتونو کې الله څلور حسي ، ښکاره کېدونکي او ظاهر دلائل پیش کړي دي چې په هغې کې دا ښکاره کوي چې الله پدې قادر دی چې تاسې له مرګ نه وروسته بېرته را ژوندي کړي او دا ممکن هم دي .

# لـمړی دلـیـل

## انـسـان لـه نـطفې څخه پـیـدا کـول

الله فـرمـايـي : أَفَرَأَيْتُم مَّا تُمْنُونَ (آيـا تـاسې مـني تـه کـتـلي دي) مـنـي څه شی دی؟ دا هغه شی دي چې د هضم شوي خوراک نـه اضافـي پـاتـې شي او پـه بـدن کـې لـکه د خپـاره شوي شبـنم داسې پـروت وي کـلـه يـې چې انـسـان ويـسـتـل وغـواړي نـو را ټـول شـي او د ټـوپ وهـونـکـو اوبـو پـه شکـل کـې بـهـر شي او چې د يـوې ښځې رحم تـه لاړ شي نـو هـلـتـه تـرېـنـه يـو نـوی انـسـان جوړ شي نـو چې الله دا مـنـي د يـو انـسـان لـه بـدن څخه را ټـولـيـږي او هغه د بـل انـسـان رحم تـه ورځي او هـلـتـه الله تـرېـنـه يـو انـسـان جوړولـی شي نـو بـيـا پـدې کـې څه مـشکـل دی چې الله د خـاورو نـه يـو انـسـان را پـورتـه کـړي؟

او همدا دلـيـل د قـرآن کـريـم پـه نـورو بـرخـو کـې هم تـکـرار شوی دی پـه يـو ځـای کـې الله فـرمـايـي :

أَيَحْسَبُ الْإِنسَانُ أَن يُتْرَكَ سُدًى* أَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِّن مَّنِيٍّ يُمْنَى* ثُمَّ كَانَ عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوَّى* فَجَعَلَ مِنْهُ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنثَى *أَلَيْسَ ذَلِكَ بِقَادِرٍ عَلَى أَن يُحْيِيَ الْمَوْتَى .[1]

تـرجـمـة : آيـا ګمـان کـوي (کـافـر) انـسـان چې پـرې بـه ښود شي دی چـټـي (بـېکـاره) بـی قـيـده مـهـمـلـه بـېکـاره (پـه دنـيـا او عقـبـا کـې مـکـلـف بـه نـه شي پـه احکـامـو د ده) . آيـا نـه ؤ دغه (انـسـان اول) يـو څـاڅکـی لـه مـنـي څخه چې تـويـوه شي (اچـوه شي پـر رحمـونـو د ښځو کـې) . بـيـا وو دی يـوه ټـوټـه د ويـنـو نـو پـيـدا کـړل الله (انـدامـونـه ئـي) پـس بـرابـر کـړ (صورت ئـې او روح ئـې پـکـې وپـوکـلـو) نـو پـيـدا کـړ لـه هغه

[1] سورة الطارق آيـة ٥:٨

(اوبو د مني) څخه جوړه (دوه صنفه) نارینه او ښځه آیا نه دی دغه (ذات) قدرت لرونکی کوونکی د دغو افعالو قادر په دې باندې چې ژوندي کړي مړي (بلکه ښه قادر دی) .

په بل ځای کې الله فرمایي :

فَلْيَنظُرِ الْإِنسَانُ مِمَّ خُلِقَ* خُلِقَ مِن مَّاء دَافِقٍ* يَخْرُجُ مِن بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَائِبِ* إِنَّهُ عَلَى رَجْعِهِ لَقَادِرٌ . [1]

ترجمة : نو ودې ګوري انسان چې (اصلا) له څه شي څخه پیدا کړل شوي دي . پیدا کړل شوی دی (انسان) له اوبو توپ وهونکیوڅخه (په رحم کې) .هسې اوبه چې راوځي له منځه د شاؤ (د سړیو) او له هډو کیود سینو (د ښځو) څخه . بېشکه دغه (الله ) په بیا بېرته ژوندي ګرځولو د هغه (انسان) خامخا توانا قادر دی .

---

[1] سورة القيامة آية ٣٦:٤٠

# دوهم دلیل

## ګیاه را شنه کول

د سورة واقعې په پورتنیو آیتونو کې دوهم دلیل الله د ګیاه ګانو د را شنه کولو یاد کړی دی الله فرمایل : أَفَرَأَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ * أَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُ أَمْ نَحْنُ الزَّارِعُون [1] .

ترجمة : آیا پس وینئ (چې خبر راکړئ ماته) هغه چې کرئ ئې تاسې . آیا تاسې زرغونوئ هغه (کرل شوي) که مونږ یو زرغونوونکي (پخوونکی د هغه بلکه ته ئې ای الله ) .

پدې کې الله دېته اشاره کوي چې کله یوه د غلې دانه په لنده زمکه کې واچول شي او بیا په هغې باندې اوبه هم ورشي او خاوره پرې ور واوړي نو عقل خو اوس دا وایي چې دا دانه د خرابه شي ، خوسا د شي او له کاره د ولویږي لکن داسې نه کیږي بلکه هلته په امن کې پاتې کیږي یو څه وخت هلته پاتې کیږي بیا هغه را ټوکیږي او شنه کیږي او بیا له هغه نه لویه ونه جوړه شي او یا لوی بوټی ورڅخه جوړ شي نو چې الله پدې قادر دی چې له وړې دانې څخه لویه ونه د رولی شي نو بیا پدې کې څه مشکل دی چې هغه د له خاورو څخه یو انسان را پورته کړي؟

دا مطلب هم په قرآن کریم کې بیا بیا تکرار شوی دی په یو ځای کې الله فرمایي :

---

[1] سورة الواقعة آیة ٦٣-٦٤

وَهُوَالَّذِي يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْراً بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ حَتَّى إِذَا أَقَلَّتْ سَحَاباً ثِقَالاً سُقْنَاهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ فَأَنزَلْنَا بِهِ الْمَاء فَأَخْرَجْنَا بِهِ مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ كَذَلِكَ نُخْرِجُ الْموْتَى لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ .[1]

ترجمة : او هم دغه (الله ) هغه ذات دى چې رالیږي بادونه زیرى کوونکي په مخ کې د رحمت د ده (چې باران دى) تر هغه پورې چې راواخلي (دغه برونه) وریځې درنې (په اوبو سره) چې روانوو مونږ دغه (وریځې زرغونولو د) هغه ځمکې ته چې مړه ((وچه بې ګیاه)) وى پس نازلوو مونږ له دې وریځو څخه اوبه نو راباسو مونږ په هغو اوبو له هر قسم میوو څخه هم داسې (چې دغه مړه وچه ځمکه ژوندۍ کوو) راباسو مونږ مړي (له ځمکې) دپاره د دې چې پند واخلئ (او لازم دى چې غور پکې وکړئ) .

## دریم دلیل

### د باران راښکته کول

الله فرمایي : أَفَرَأَيْتُمُ الْمَاء الَّذِي تَشْرَبُونَ (68) أَأَنتُمْ أَنزَلْتُمُوهُ مِنَ الْمُزْنِ أَمْ نَحْنُ الْمُنزِلُونَ (69) .[2]

ترجمة : آیا پس وینئ (چې خبر راکړئ) تاسې اوبه هغه چې څښئ ئې تاسې (او ژوند پرې تړلى دى) آیا تاسو نازلې کړې دي هغه لطیفې خوږې (اوبه) له سپینو وریځو څخه که مونږ یو نازلوونکي راښکته کوونکې (د هغو اوبو ؟ بلکه ته ئې اى الله !) .

---

[1] سورة الاعراف آية ٥٧
[2] سورة الواقعة

پدې آيت کې الله انسانانو ته تنبيه ورکوي چې که د دوی په زړونو کې د بيا را ژوندي کېدلو په اړه شک او يا انکار وي نو دوی د پدې اړه فکر وکوي چې الله باران په څه ډول را نازلوي دا چې له زمکې نه بخارونه پورته شي او هلته الله دا د بخارونو ذرې سره را ټولولی شي او بيا له هغه ذرو څخه يو ځاځکی جوړولی شي او هغه زمکې ته د باران په توګه را ښکته کولی شي نو بيا پدې کې څه مشکل دی چې الله له خاورو څخه يو مړ انسان را ژوندی کړي؟

# څلورم دليل

## د اور را ويستل

الله فرمايي :

أَفَرَأَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ (71) أَأَنتُمْ أَنشَأْتُمْ شَجَرَتَهَا أَمْ نَحْنُ الْمُنشِؤُونَ (72) .[1]

ترجمة : آيا پس وينئ (چې خبر راکړئ) تاسې د اور هغه نه چې بلوئ ئې تاسې (له هر راز (قسم) محروقاتو نه) آيا تاسې پيدا کړې ده ونه د دې (اور) او که مونږ پيدا کوونکي يو (د هغې ونې او د ټولو محروقاتو ؟ بلکه ته ئې ای الله !) .

الله پدې آيتونو کې انسان ته تنبيه ورکوي که ستا پدې کې شک وي چې الله به مړي څنګه را ژوندي کوي نو پدې اړه فکر وکوه چې الله څنګه کولی شي له يوې شنې ونې څخه چې طبيعت يې لوند او يخ وي اور را وباسي چې طبيعت يې ګرم او وچ دی

[1] سورة الواقعة

یعني اور او شنه ونه دواړه بالکل سره ضد وي لکن الله له شنې ونې څخه اور پورته کولی شي نو چې ضد له ضد سره جمع کولی شي نو بیا له خاورې نه د یو انسان په پیدا کولو کې څه مشکل دی؟

دا دلیل په نورو ځایونو کې هم تکرار شوی دی لکه الله چې فرمایي : **وَضَرَبَ لَنَا مَثَلاً وَنَسِيَ خَلْقَهُ قَالَ مَنْ يُحْيِي الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيمٌ * قُلْ يُحْيِيهَا الَّذِي أَنشَأَهَا أَوَّلَ مَرَّةٍ وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيمٌ * الَّذِي جَعَلَ لَكُم مِّنَ الشَّجَرِ الْأَخْضَرِ نَاراً فَإِذَا أَنتُم مِّنْهُ تُوقِدُونَ** . [1]

ترجمة : او ترې پر مونږ پورې مثل (د هډو کي وراسته) او هېر کړی ئې دی پیدایښت خپل ، وائي څوک به ژوندي کړي دغه هډو کي حال دا چې هغه وراسته دی . ووایه (ای محمده ده ته) بیا به ژوندي کړي دغه (وراسته هډو کي) هغه (مطلق قادر) چې پیدا کړي ئې دي اول ځلې حال دا چې دغه (الله ) په هر قسم پیدایښت ښه عالم دی (که نوی وی او که زوړ) . هغه (مطلق قادر) چې پیدا کړی ئې دی تاسې ته له ونې شنې څخه اور پس تاسې له هغې ونې څخه بلوئ اور .

## پنځم دلیل

### اول ځل پیدا کول

انسان باید پدې کې فکر وکوي چې انسان اول ځل چا پیدا کړی دی؟ قرآن کریم انسان ته دا ور په زړه کوي چې پدې کې فکر وکوه هغه ذات چې ستا په اول ځل پیدا کولو باندې قادر وو هغه پدې قادر دی چې تا دوهم ځل له قبر نه ژوندی را پورته کړي او چې د هغه په وړاندې ستا په

[1] سورة يس آية ٧٨-٨٠

اول ځل پیدا کولو کې څه مشکل نه وو نو په دوهم ځل کې د څه مشکل دی؟ دا دلیل په قرآن کریم کې څو ځایه تکرار شوی دی زه ترینه دوه د مثال په توګه راوړم .

الله فرمایي :

**كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللَّهِ وَكُنتُمْ أَمْوَاتاً فَأَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ .** [1]

ترجمة : څرنګه کافران کیږئ په الله باندې حال دا چې وئ تاسې مړه بیا (الله ) ژوندي کړئ تاسې (د روح په درکولو سره) بیا به (الله ) مړه کړي تاسې بیا به (الله ) ژوندي کړي تاسې (په بعث سره) بیا به خاص هم ده ته وروستئ شئ . (د خپلو اعمالو د جزا لپاره) .

په بل ځای کې الله فرمایي :

**وَقَالُواْ أَئِذَا كُنَّا عِظَاماً وَرُفَاتاً أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ خَلْقاً جَدِيداً * قُل كُونُواْ حِجَارَةً أَوْ حَدِيداً * أَوْ خَلْقاً مِّمَّا يَكْبُرُ فِي صُدُورِكُمْ فَسَيَقُولُونَ مَن يُعِيدُنَا قُلِ الَّذِي فَطَرَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ فَسَيُنْغِضُونَ إِلَيْكَ رُؤُوسَهُمْ وَيَقُولُونَ مَتَى هُوَ قُلْ عَسَى أَن يَكُونَ قَرِيباً .** [2]

ترجمة : او دوی ویل چې کله مونږ هډوکي او خاورې شو بیا به مونږ بېرته په نوي پیدائښت سره را پیدا کېږو؟ ته ورته ووایه چې کاڼی شئ او یا وسپنه او یا بل داسې مخلوق چې ستاسې په زړونو کې ډېر لوی شی ښکاره کیږي (بیا به هم بېرته را ژوندي کول کېږئ) زر ده چې دوی به تاته ووایي بیا به مو څوک بېرته را ژوندي

[1] سورة البقرة آية ٢٨
[2] سورة الاسراء آية ٤٩:٥١

کوي؟ ته ورته ووایه هغه چې تاسې یې اول پیدا کړئ دوی به تاته خپل سرونه وښوروي او وبه وایي دا به څه وخت وي؟ ته ورته ووایه چې کېدای شي نېږدې وي .

## شپږم دلیل

څوک چې لوی شی جوړولی شي وړوکی هم جوړولی شي

هغه څوک چې پدې باندې قادر وي چې سخت ، مشکل او لوی شی جوړ کړي هغه خامخا وړوکی شی جوړولی شي او دا وړوکی او لوی شی الله زمونږ لپاره وایي کنه نو د الله په وړاندې هرڅه وړوکی شی دي ..

پدې دلیل کې الله انسان ته ور په یاد کوي چې ته دا وګوره اسمانونه ، زمکه او د دنیا ټول مخلوقات چې لوی لوی شیان پکې دي د هغه پیدا کول ډېر سخت دي او که د انسان را ژوندي کول؟ نو هغه انسان چې کار کونکی عقل او ژوندی دماغ ورسره وي خامخا به پدې پوه وي شي چې رښتیا هم زما له پیدا کولو نه خو د اسمانونو پیدا کول ډېر سخت کار دی چې الله هغه کولی شي نو ما هم را ژوندی کولی شي.

الله فرمایي :

أَوَلَمْ يَرَوْاْ أَنَّ اللّهَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ قَادِرٌ عَلَى أَن يَخْلُقَ مِثْلَهُمْ .[1]

[1] سورة الاسراء آیة ۹۹

ترجمة : آیا دوی پدې نه پوهیږي چې هغه الله چې اسمانونه او زمکه یې پیدا کړي دي پدې باندې قادر دی چې د دوی مثل پیدا کړي.

په بل ځای کې الله فرمایي :

أَوَلَيْسَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِقَادِرٍ عَلَى أَنْ يَخْلُقَ مِثْلَهُم بَلَى وَهُوَ الْخَلَّاقُ الْعَلِيم . [1]

ترجمة : آیا نه دی هغه (مطلق قادر) چې پیدا کړي ئې دي آسمانونه او ځمکه قادر په دې باندې چې پیدا کړي په شان د دوی ؟ هو ! (قادر دی په دې باندې) او هم دی دی اصلي ډیر پیدا کوونکی (د مخلوقاتو) ښه عالم (پر هر شی باندې) .

## اوم دلیل

### د حساب او انصاف کول

الله هغه ذات دی چې د هغه په وړاندې د هېڅ عمل کونکي عمل نه ضائع کیږي او د هغه په حضور کې هېڅوک هم له انصاف څخه نه بې برخې کیږي او په دنیا کې که یو څوک هرڅو ظلم او زیاتی وکوي خو د الله په وړاندې به هغه مغلوب وي او د خپلو کړو وړو سزا به ګالي نو ددې لپاره به خامخا دا خلق بېرته را ژوندي کول کیږي نو چې یو انسان په سمه توګه فکر وکوي همدا دده لپاره بس ده چې وربانديې یقین وکوي چې هغه ظالمان چې دلته په مظلومو خلقو باندې ظلم کوي د هغوی ظلمونه د الله له علم نه بهر نه دی د الله په علم کې شته نو دوی به ټول را ژوندي کیږي ، ظالم او مظلوم به سره مخامخ کیږي او له ظالم

---

[1] سورة یس آیة ٨١

نه به د مظلوم لپاره بدل اخیستل کیږي او که چېرته دا خلق بېرته را ژوندي نه کړل شي نو د الله په حق کې به د عدالت صفت نفی شي او دا خو نا ممکنه ده الله فرمایي :

إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعاً وَعْدَ اللّهِ حَقّاً إِنَّهُ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ لِيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُواْ وَعَمِلُواْ الصَّالِحَاتِ بِالْقِسْطِ وَالَّذِينَ كَفَرُواْ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُواْ يَكْفُرُونَ . [1]

ترجمة : خاص هم ده ته ورتلله ستاسې دی د ټولو وعده کړې ده الله وعده حقه ، بېشکه دی اول پیدا کوي دا مخلوق بیا ژوندي کوي ئې (پس له مرګه) لپاره د دې چې جزا ور کړي هغو کسانو ته چې ایمان ئې راوړی دی او کړي ئې دي ښه (عملونه) په عدل ، انصاف سره (چې خورا (ډیره) وړه نیکی هم نه ضائع کیږی) ، او هغه کسان چې کافران شوی دی شته دوی ته څښل له ایشیدلو اوبو او عذاب دی دردناک په سبب د دی چې کافران کیدل .

## آتم دلیل

### په دنیا کې هم مړي ژوندي شوي دي

الله په متعدد ځله په دنیا کې هم مړي ژوندي کړي دي او په هغه وخت کې خلقو په سترګو لیدل او زمونږ امت چې هغه حالت کې موجود نه وو نو الله یې ورته په قرآن کې ددې لپاره قصه کوي چې دا مت به پدې پوه شي چې کله الله په دنیا کې مړي ژوندي کولی شي نو چې په آخرت کې یې را ژوندي کوي پدې کې به څه اشکال وي؟

[1] سورة یونس آیة ٤

ﷲ په قرآن کريم کې څو قصې مونږ ته کړې دي چې په هغې کې له مرګ نه وروسته ژوندي کول شوي وي :

۱. د بني اسرائيلو په قصه کې کله چې دوی د حضرت موسی سره کوه طور ته لاړل دوی وويل : مونږ چې ترڅو پورې ﷲ په سترګو ونه وينو ايمان نه راوړو بيا ﷲ ورباندې يو تندر نازل کړو ټول مړه شول بيا بېرته ژوندي شول ﷲ د هغې واقعې په اړه فرمايي :

وَإِذْ قُلْتُمْ يَا مُوسَى لَنْ نُؤْمِنَ لَكَ حَتَّى نَرَى اللَّهَ جَهْرَةً فَأَخَذَتْكُمُ الصَّاعِقَةُ وَأَنْتُمْ تَنْظُرُونَ* ثُمَّ بَعَثْنَاكُمْ مِنْ بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ. [1]

ترجمة : او (ياد کړئ !) هغه وخت چې وويل تاسې ای موسی له سره به باور ونه کړو مونږ په خبره ستا تر هغه پورې چې په خپله ووينو ﷲ ښکاره پس ونيولئ تاسې تندر (اور) حال دا چې تاسې (ورته) کتل پس له هغه بيا ژوندي کړئ مونږ تاسې پس له مرګه د تاسې دپاره د دې چې تاسې شکر ګذار شئ .

۲. د غوا په قصه کې

کله چې په بني اسرائيلو کې يو کس ووژل شو او قاتل يې نه وو معلوم او هېڅ لاره يې د معلومولو نه وه نو ﷲ بني اسرائيلو ته وويل : يوه غوا حلاله کړئ د هغې يوه ټوټه په مړي باندې ووهئ هغه به ژوندی شي او خپل قاتل به وښيي بيا دوی همداسې وکول هغه مړی را ژوندی شو خپل قاتلان يې ياد کړل او بيرته مړ شو .

۳. الذين خرجوا من ديارهم

[1] سورة البقرة آية ٥٥ او ٥٦

ﷲ د څه کسانو په اړه فرمايي :

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ خَرَجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَهُمْ أُلُوفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ فَقَالَ لَهُمُ اللَّهُ مُوتُوا ثُمَّ أَحْيَاهُمْ إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لا يَشْكُرُونَ * وَقَاتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللّهِ وَاعْلَمُواْ أَنَّ اللّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ * مَّن ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَاعِفَهُ لَهُ أَضْعَافًا كَثِيرَةً وَاللّهُ يَقْبِضُ وَيَبْسُطُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ . [1]

ترجمه : آيا نه ده لېدلې تا (يعني نه دی رسېدلی علم ستا ای عبرت اخيستونکيه ! قصې د) هغو کسانو ته چې وتلي وو له کورونو خپلو نه حال دا چې دوی په زرګونو و له ويرې د مرګه پس وفرمايل دوی ته ﷲ چې مړه شئ (پس مړه شول) بيا ئې ژوندي کړل دوی بېشکه ﷲ خامخا څېښتن (خاوند) د فضل (مهرباني) دی په خلقو باندې وليکن ډير د خلقو شکر نه باسي . (لکه چې ښايي او پند ترې نه اخلي) . او جنګ کوئ (ای مؤمنانو !) په لاره د ﷲ کې (د دين د ترقی له پاره) او پوه شئ تاسې ! چې بېشکه ﷲ ښه اوريدونکی (د ټولو اقوالو) ښه عالم (په ټولو احوالو) دی ، څوک دی هغه سړی چې قرض ور کوی ﷲ لره قرض نېک (د زړه له اخلاصه د ﷲ په لاره کې په صرفولو سره) نو زيات به کړی ﷲ (ثواب د) قرض ده لره په زياتوالی ډير او ﷲ تنګوی (رزق) او فراخوی (رزق) او هم (خاص) بيا به ده ته بيولی کيږئ ! (د اعمالو د جزا له پاره) .

ددې کسانو په اړه حضرت عبد ﷲ ابن عباس فرمايي : دا څلور زره کسان وو او په بل روايت کې همدی مبارک فرمايي آته زره کسان وو امام ابو صالح فرمايي نه زره کسان وو ، د

[1] سورة البقرة آية ٢٤٣ تر ٢٤٥

عبد الله بن عباس پـه بل قول کې څلوېښت زره کسان وو ، حضرت وهب بن منبه فرمايي څو دېرش زره کسان وو ابن ابي حاتم د ابن عباس نه روايت کوي د يو کلي خلق وو چې ذَاوَرْدَان يې ورته ويل په علاقه کې وبا ګډه شوه دا خلق چې د مختلفو رواياتو له مخې يې حساب مخکې تېر شو چې هرڅو کسان وو دا ټول له خپل کلي نه ووتل ددې امله چې دوی ډارېدل چې د وبا په بيماري بانديې مړه نه شي او داسې يو ځای ته يې تلل غوښتل چې هلته وبا نه وي چې يو ځای ته ورسېدل الله وربانديې امر وکولو چې موتوا (مړه شئ) او ټول خلق دا چې څلور زره ، که آته زره ، که نه زره ، که څو دېرش زره او که څلوېښت زره وو ځای په ځای مړه شول او مړه داسې شول چې دوی په يوه خوړ کې وو چې دا خوړ وربانديې ډک وو الله ورته دوه فرښتې را ولېږلې يوه د خوړ په يو طرف کې او بله په بل طرف کې ورته و درېده الله هغوی ته وويل چې په دوی بانديې چغه وکوئ هغوی وربانديې په يو ځای چغه ووهله او ټول خلق داسې مړه شول لکه يو انسان چې مړ کيږي بيا خلق راغلل دېوال يې ترې تاو کړو او هماغلته پراته وو بدنونه يې خراب شول او زيات وخت وربانديې تېر شو په يو وخت کې يو نبي حضرت حزقيل پدې لاره تېرېدلو چې ويې ليدل دومره ډېر خلق مړه دي نو يې د الله نه وغوښتل چې دا خلق دده په لاس بانديې ژوندي کړي الله چې د خپل نبي دعاء نه رد کوي نو دغه نبي ته يې دا څو کلمې ور وښودلې نبي چې هغه کلمې وويلې هغوی ټول را ژوندي شول نبي ورته وويل :

أَيَّتُهَا الْعِظَام الْبَالِيَة إِنَّ الله يَأْمُرك أَنْ تَجْتَمِعِي

ترجمه : ای زړو هډوکو الله تاسې امر کوي چې سره را ټول شئ

ددې خبرې سره د هر بدن هډوکي د خپلو نورو هډوکو سره را ټول شول بیا یې ورته وویل :

أَيَّتها الْعِظَام إِنَّ اللَّه يَأْمُرك بِأَنْ تَكْتَسِي لَحْمًا وَعَصَبًا وَجِلْدًا

ترجمه : ای هډوکو الله تاسې ته امر کوي چې تاسې غوښه پله او پوستکي واغوندئ .

لدې خبرې سره په ټولو هډوکو باندې غوښه را شنه شوه او څرمن وربانډې وختله او ټول بدنونه یې پوره شول بیا یې ورته وویل :

أَيَّتها الْأَرْوَاح إِنَّ اللَّه يَأْمُرك أَنْ تَرْجِع كُلّ رُوح إِلَى الْجَسَد الَّذِي كَانَتْ تَعْمُرهُ .

ترجمه : ای روحونو الله تاسې ته امر کوي چې را وګرځئ هر روح د په هغه بدن کې ننوزي چې دی وربانډ اباد وو .

لدې سره ټول ارواح راغلل او په بدنونو کې ننوتل خلق را پورته شول د الله حمد او ثناء یې وویله د دوی په را ژوندي کولو کې د ټولو خلقو لپاره لوی عبرت وو ددې امله خو الله هم فرمايي چې الله د فضل خاوند دی په خلقو باندې چې هر وخت د دوی د عبرت لپاره آیتونه را لیږي او دوی ته نښې د قدرت ور ښيي .

٤ . الذي مر على قرية و هى خاوية

الله یوه واقعه مونږ ته فرمايي :

أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَى قَرْيَةٍ وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَى عُرُوشِهَا قَالَ أَنَّىَ يُحْيِي هَذِهِ اللَّهُ بَعْدَ مَوْتِهَا فَأَمَاتَهُ اللَّهُ مِئَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُ قَالَ كَمْ لَبِثْتَ قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ قَالَ بَل لَّبِثْتَ مِئَةَ عَامٍ فَانظُرْ إِلَى طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ

يَتَسَنَّهْ وَانظُرْ إِلَى حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ آيَةً لِّلنَّاسِ وَانظُرْ إِلَى العِظَامِ كَيْفَ نُنشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوهَا لَحْمًا فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ قَالَ أَعْلَمُ أَنَّ اللّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (259).[1]

ترجمه : يا (آيا ستا علم نه دى رسيدلى قصې د) هغه سړي (عزير) ته چې تير شو په يوى قريې او هغه (قريه) پريوتلې وه (ديوالونه ئى) پر بامو د دوى باندې (نو عزير) وويل څرنګه به (بيا ودانه او) ژوندى کړى الله دا (قريه يا ئې خلق) وروسته له (ورانېدو او) مړ کېدو (د اهل) د هغې؟ نو مړ کړ دى الله (او مړ ئې پرېښود) سل کاله بيا ئې پورته (ژوندى) کړ دى . وويل (الله عزير ته چې) ((څومره ځنډ (تاخير) کړى دى تا (دلته) ،) وويل (عزير) (ځنډ (تاخير) مې کړى دى يوه ورځ يا يوه برخه د ورځې) ، وويل (الله داسې نه ده لکه چې ته وائې) بلکه ځنډ (تاخير) کړى دى تا (دلته) سل کاله نو و ګوره خوړو خپلو ته (چې انځر او انګور دي) او (شيانو د) څښلو خپلو ته (چې شوده او عصير دي) چې هېڅ نه دي خراب شوي (سره له تېرېدلو د سلو کلونو) او وګوره خره ته دې (چې هډو کي ئې څرنګه تک سپين ځليږي) او دپاره د دې چې مونږ وګرځوو تا دليل (د قدرت) له پاره د خلقو (په بيا ژوندى کېدو سره) او وګوره طرف د هډو کو (د خره خپل) ته چې څرنګه راخوځوو (مونږ) هغه بيا ورآغوندو هغوى ته غوښه نو کله چې ورښکاره شو ده ته (دا حال په مشاهده سره نو) وويل (عزير چې اوس) پوهيږم (په مشاهده سره هم) چې بېشکه الله په هر شي باندې (چې اراده وفرمائي) ښه قادر دى .

بني اسرائيل په مختلفو قسمونو باندې تقسيم شوي وو ځينې يې داسې وو چې د وخت د پيغمبر متابعت يې کاوه او په سمه توګه يې د الله دين

[1] سورة البقرة

ته غاړه کېښوده او يوه ډله پکې داسې خلق وو
چې هغوی به د هغه وخت اسماني دين نه منلو او
په اسماني کتاب کې به يې تحريف کاوه او هغه
څوک چې صحيح مسلمانان به وو په هغوی به يې هم
کوښښ کاوه چې دا تحريف شوی کتاب وګوري او له
خپل ديانت څخه منحرف شي او ډېر پکې داسې وو
چې د وخت په انبياوو پسې به يې را اخيستې وه
او هغوی به يې قتل کول نو کله چې په دوی کې
فسادونه زيات شول او د انبياوو قتلونه يې
زيات کړل او دوه محترم انبياء حضرت سيدنا
زکريا او حضرت يحی يې په شهادت ورسول الله
په دوی باندې يو حاکم مسلط کړو چې بخت نصر يې
ورته ويل دا د عراق له خوا نه د لښکر سره بيت
المقدس ته راغلو او د بني اسرائيلو سره يې
جنګ وکولو ډېر يې ترې مړه کړل او ډېر يې
ژوندي ترېنه ونيول او په کم تعداد کې ترېنه و
تښتېدل بخت نصر بنديان له ځان سره بابل ښار
ته بوتلل چې پدې ډله کې ځينې علماء هم وو چې
هغوی په رښتيا سره د اسماني دين متابعت کاوه
او له بيت المقدس نه د وتلو نه وړاندې يې
تورات چېرته خښ کړو چې يوازې دوی ته (يو څو
علماوو ته) يې ځای معلوم وو او په همدې ډله
کې حضرت عزير بن شرخيا هم وو چې يو څه وخت
وروسته بيت المقدس ته را ستون شو خو ويې ليدل
چې بيت المقدس ډېر په خراب حالت کې وو او کوم
کورونه چې پاتې وو خلق ترېنه تللي وو هغه
کورونه د وخت په تېرېدلو سره وران شوي وو او
هر ځای د مړيو هډوکي او د بدن برخې ښکاره
کېدلې په حيرانتيا سره په ښار کې روان وو او
خر يې په ځان پسې ور کش کولو کله چې باغونو
ته ورسېدو ويې ليدل چې باغونو په تازه ميوو
باندې ډک دي نو په زړه کې يې يو ډول د همدردي
احساس وکولو چې دا مېوې وګوره پخې دي او
باغونه ښه تازه دي لکن خلق نشته چې پالنه يې
وکوي او استعمال يې کړي نو په حيرانتيا سره
يې يوې بلې خوا ته کتل او له ځان سره يې وويل

: أَنَّىَ يُحْيِي هَذِهِ اللّهُ بَعْدَ مَوْتِهَا (په څه ډول به ژوندۍ کړي الله دا قريه وروسته له مرګه يې) بيا لاړو له هغه ونو څخه يې انګور ، انځر وخوړل او يو شی چې ورسره وو هغه يې ترېنه ډک کړل بيا يې په يوه لوښي کې د انګورو اوبه وويستې هغه يې وڅښلې او يو څه نورې ورسره پاتې شوې او تر يوه ونه لاندې سيوري ته کېناستلو يو څو لحظې ژوندی وو بس الله په همدې ځای باندې مړ کړو له مرګ نه وروسته يې د خلقو ، حيواناتو او مارغانو له سترګو نه پټ کړو .

د عزير ددې مرګ نه اويا کاله وروسته الله يوه ملکه د فارس يو بادشاه ته چې لوسک نومېدو ور ولېږله او هغې ته يې وويل چې ته خپل خلق درسره بوزه او د بيت المقدس شاوخوا اباد کړئ او هلته ژوند وکوئ لوسک بادشاه په خپلو خلقو کې لسګونو زرګونو خلقو ته وويل چې ځو هلته په بيت المقدس کې ابادي کوو هلته لاړل ښار يې له سر نه په ښکلې نقشه باندې اباد کړو او په بني اسرائيلو کې چې کوم کسان ژوندي پاتې وو هغوی هم بېرته ورغلل په دېرشو کلونو کې يې د بيت المقدس ښار له مخکې نه ښه جوړ کړو چې د عزير ددې وفات سل کاله پوره شوه نو هغه يې په خپل قدرت را ژوندی کړو وفات کړی يې د سهار په وخت کې وو او را ژوندی يې د مازيګر په وخت کې کړو اول يې دده زړه ژوندی کړو بيا يې سترګې ژوندۍ کړې ترڅو هغه په خپلو سترګو ووينې او دده د نور بدن جوړښت ده په خپلو سترګو وليد چې له سر نه بېرته څنګه جوړ شو بيا الله يوه مبارکه فرښته ورته را ولېږله پوښتنه يې ترې وکوله څومره وخت دلته پاتې شوې؟ ده چې شاوخوا وکتل ويې ويل : يوه ورځ چې بيا يې وکتل چې ا وس خو هم لا لمر نه دی غورځېدلی نو بيا يې وويل : بلکه د ورځې څه برخه بيا فرښتې ورته وويل : تا دلته سل کاله تېر کړل اوس د هغه خوراک ته

وګوره هغه مېوه چې ده شکولې وه داسې وه لکه ده چې اوس شکولې وي او هغه د انګورو شربت چې له ده سره په لوښې کې پاتې وو نه بد بويه شوی وو او نه خراب شوی بلکه هماغه شان تازه پروت وو ده خر په ونه پورې تړلی وو فرښتې ورته وويل : اوس د خره ته وګوره هغه مړ وو او هډوکې يې سپين هرې خوا ته خواره شوي وو او زاړه شوي وو پدې وخت کې حضرت عزير د اسمان له لورې د فرښتې اواز واورېدو چې ويل يې : ای زړو هډوکو د الله په امر سره جمع شئ هغه هډوکي سره را ټول شول او ټول اندامونه يې سره يو ځای شول په هډوکو باندې غوښه شنه شوه او هغه پکې پټ شول څرمن ور باندې وغوړول شوه او له څرمنې نه وېښته را ووتل دا ټول کارونه د حضرت عزير تر سترګو لاندې وشول بيا فرښته راغله په هغه کې يې روح واچولو خر پاڅېدو حضرت عزير زر الله ته په سجده باندې پرېوت او ويې ويل : أَعْلَمُ أَنَّ اللّٰهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (زه پدې پوهېږم چې الله په هرڅه باندې قادر دی)

ددې قصې په اړوند روايت شوی دی چې عزير کله پدې مرګ باندې وفات کېدو نو د څلوېښتو کلونو وو تکړه انسان وو او تور وېښته يې وو او مېرمن يې حامله وه چې کله الله را ژوندی کړو نو په هماغه شکل کې وو په خپل خره باندې سپور شو خپلې محلې ته راغلو هېچا نه پېژندلو ځکه دده له وخت نه سل کاله تېر شوي وو هغه نسل ټول ختم شوی وو او اوس نور خلق دلته پيدا شوي وو ده خپل کور هم نه پېژندلو د کور مخې ته يې يوه بوډۍ ړنده ښځه ناسته وه دا دده په وخت کې د شلو کلونو وه او د دوی د کور خدمت به يې کاوه ده ترې پوښتنه وکوله : هغه د عزير کور دادی؟ هغې ورته وويل : هو او بيا يې سخت وژړل او په ژړا کې يې وويل : عزير خو په لسګونو کاله وړاندې لدې ځای نه تللی دی او

خلقو هېر کړی دی او ما بیا هېڅوک نه دي لیدلي چې د هغه پوښتنه یې کړې وي مګر تا اوس وکوله ده مبارک ورته وویل : زه عزیر یم الله سل کاله مړ کړم او اوس یې را ژوندی کړم هغه حیرانه شوه او ورته یې وویل : عزیر خو یو نېک انسان وو او دعاء یې قبلېده چې کوم بیمار ته به یې دعاء وکوله هغه به جوړ شو زما لپاره دعاء وکوه چې ځان مې ښه شي او نظر مې کار وکوي حضرت عزیر ورته دعاء وکوله هغه جوړه روغه شوه او پاڅېده او ښه تېز نظر یې شو ویې ویل : زه ددې ګواهي ورکوم چې ته رښتیا عزیر یې .

بیا یې خلقو ته ور وستلو چې دده لمسیان وو څوک پکې اتیا کلن وو څوک پکې لدې نه هم زیات وو وېښتان یې سپین وو څوک پکې په ملا ښکته شوي وو او څوک پکې زیات کمزوري وو ورته یې وویل : دا هغه عزیر دی چې لتاسې نه سل کاله ورک وو اوس الله بېرته تاسې ته را وګرځولو ځوان سړی دی او لکه د ځوانانو داسې رفتار کوي او تکړه دی هېچا نه منله خو زوی یې ورته راغلو ورته یې وویل : ماته مې مور ویلي وو چې ستا د پلار د اوږو په مینځ کې په شا کې یوه توره نښه وه حضرت عزیر چې شا ورته ښکاره کړه هغه تور خال او نښه یې پکې ولیده خو بیا یې هم پوره یقین نه راتلو یو ډېر سپین ږیری کس را پاڅېدو ورته یې وویل زمونږ نیکونو مونږ ته قصه کړېده چې کله بخت نصر په بیت المقدس باندې حمله وکوله تورات یې وسوزولو او په هغوی کې ډېر کم کسان داسې پاتې شول چې د هغه زباني یاد وو یو پکې عزیر وو که ته چېرته عزیر وې نو مونږ ته د تورات تلاوت وکوه ده دا خلق له ځان سره کړل او هغه ځای ته یې ور وستل چېرته چې دوی د تورات نسخه خښه کړې وه هغه یې را وویستله په دوو ټوټو کې تاو کړل شوې وه یو څه ورقې یې

تري خرابې شوې وې بيا تر يوه ونه لاندې ورته کېناستل دوی نسخې ته کتل ده ورته تلاوت شروع کړو يو يو حرف يې ورته تلاوت کړو او يوه کلمه او يو آيت يې هم پکې فرق ونه کولو .

نو بيا ورسره دوی په مينه ستړي مشي وکوله او د هغه نه يې د تبرک حاصلولو کوښښ کاوه لکن بني اسرائيل چې په فساد کې مشهور دي نو دوی په هدايت کې زيات نه شول بلکه سر چپه يې وويل چې عزير ابن الله (عزير د الله زوی د ی) نعوذ با لله

۵. د حضرت ابراهيم قصه

حضرت ابراهيم الله ته وويل : ماته را وښيه ته مړي څنګه ژوندي کوې؟ الله ورته وويل : ولې ستا پرې يقين نشته؟ حضرت ا براهيم ورته وويل : يقين مې وربانديې شته لکن چې زړه مې مطمئن شي بيا الله ورته وويل : څلور مارغان واخله هغه مړه کړه او غوښې يې سره شريکې کړه بيا يې ځان ته شاوخوا په نېږدې غرونو باندې کيږده او بيا يې ځان ته در وغواړه کله چې حضرت ابراهيم همداسې وکول او مارغان يې ځان ته ور وغوښتل د هر مارغه غوښې به په هوا کې له نورو غوښو سره يو ځای شوې او حضرت ا براهيم ته به د مکمل مارغه په شکل کې راغلو .

پدې تولو واقعو کې الله له مرګ نه وروسته ژوندي کول کړي دي نو چې په دنيا کې الله يو شی له مرګ نه وروسته را ژوندی کولی شي نو پس له مرګه او يا د **قيامت** په ورځ په راژوندي کولو کې څه مشکل دی؟

# عجب الذنب

مخکې يې په يو حديث کې يې ذکر تېر شو هلته ما وعده کړې وه چې پدې اړه به تفصيل د لوستونکي مخې ته ايږدم او پدې تفصيل کې به يو بل دليل پدې موجود شي چې تر مرګ وروسته بيا را ژوندي کول ممکن کار دی ، الله يې کولی شي او حق دی کوي به يې هلته رسول الله ﷺ فرمايلي وو : **وليس من الإنسان شيء إلا يبلى إلا عظما واحدا وهو عجب الذنب ومنه يركب الخلق يوم القيامة.** [1]

ترجمة : په انسان کې چې هرڅه شی دي ټول خاورې کيږي مګر يو هډوکی چې هغه ته عجب الذنب ويل کيږي.

دا عجب الذنب د انسان په بدن کې يو وړوکی هډوکی دی چې الله ايښی دی او په هغه کې چې کوم کمالات دي هغه الله رسول الله ﷺ ته څوارلس سوه کاله وړاندې بغير د کوم ماشين او آلې څخه ور ښودلی وو اوس علماوو چې پدې کې څېړنې وکولې او ماشينونه او آلات يې استعمال کړل نو دوی دې نتيجې ته ورسېدل چې رښتيا هم په انسان کې چې څومره هډوکي دي دا ټول خاورې کيږي يوازې عجب الذنب دی چې دا نه خاورې کيږي ، نه سوزي ، او نه په بل کوم شي سره متاثر کېدلی شي او دا يو ډېر وړوکی هډوکی دی چې د ملا تېر په ښکتني آخره برخه کې الله ورته موقعيت جوړ کړی دی په اوسني طب کې ورته د Sacrum نوم هم اخلي او Primitive Streak يعني لمړی پېټه هم ورته وايي او کله چې په ذره بين وکتل شي نو پدې کې داسې يو جوړښت ښکاره کيږي لکه حافظه داسې ده چې

---

[1] رواه البخاري

ډېر زيات شيان پکې ساتل شوي دي او په اوسنيو تجربو کې خلقو هغه ډېر زيات حرارت ته ور وړاندې کړل هغه هېڅ نه شول ، ډېر زيات زور او فشار يې وربإندې وروستلو نه خو ميده شو او نه پکې هغه نظام خراب شو چې د ننه پکې دى نو د ټولو څيزنو څخه وروسته دوى ومنله چې رسول الله ﷺ څوارلس کاله وړاندې رښتيا ويلي دي : **كل ابن آدم تأكل الأرض إلا عجب الذنب منه خلق وفيه يركب.** [1]

ترجمة : بني آدم ټول زمکه خوري بغير د عجب الذنب څخه له همدې نه پيدا شوى دى او په همدې کې ترکيب شوى دى .

که ددې برخې دا عجيب کمال رسول الله ﷺ ته الله نه وى ښودلى نو دا حقيقت به تر موجوده پېړۍ پورې له خلقو نه پټ پاتې وو بلکه پدې پېړۍ کې هم د بحث شروع صرف پدې هډوکې نه بلکه په ډېرو نورو شيانو کې هم وروسته لدې کيږي چې کوم څېړونکي ته د رسول الله ﷺ حديث رسيږي هغه بيا پدې اړه بحث شروع کوي .

اوسنى څېړنې وايي چې د انسان د جوړېدنې مکمل پروگرام پدې وړوکي هډوکي کې پروت وي او له بله پلوه هغه کسان چې پدې کې يې تحقيق کړى دى هغوى وايي دا ځاى داسې دى لکه په اوسني دنيا کې چې د هرشي لپاره يو کوډ وي او هرشى په خپل کوډ له بل شي څخه بدل وي نو دا هډوکى هم داسې دى لکه د هر انسان بلکه هر حيوان چې خپل کوډ وي او ددې هډوکي اندازه لکه دنخودو دال يوه دانه دومره ده .

[1] رواه البخاري و مسلم

د مشهورې علمي مجلې مجلة العلم په ٣٦٣ ګڼه کې د عجب الذنب په نوم يو مضمون خپور کړل شوی دی په هغه مضمون کې ليکلي دي چې په ٢٠٠٦ کې چينايانو د ګډانو (پسونو) په عجب الذنب هډوکو باندې تجربه وکوله او هغه يې د تلويزيون د کامرې مخې ته په تيرو باندې کېښود او د ګاز تفنګچه يې ورته د لسو دقيقو لپاره ونيوله تردې چې هغه هډوکي اول تک سره او بيا تک تور شول بيا يې ورڅخه اور بند کړو او دا تور سکاره يې را واخيستل او هغه يې پاک کړل ويې وينځل او چې بيا يې په ذره بين ورته وکتل د هغې د ننه چې کوم نظام دی هغه داسې ښکاره کېدو لکه بالکل چې سوزېدلی نه وي او په هېڅ ډول باندې متاثر شوی نه وو .

علماء فرمايي چې په قرآن کريم کې هم دې هډوکي ته په يو ځای کې اشاره شوې ده الله فرمايي :
وَالَّذِي نَزَّلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً بِقَدَرٍ فَأَنْشَرْنَا بِهِ بَلْدَةً مَيْتًا كَذَلِكَ تُخْرَجُونَ [1]
.

ترجمة : او هغه (ذات) چې نازلې کړې ئې دي له (طرفه) د آسمانه اوبه په اندازه سره . پس ژوندي کړي دي مونږ په دغو اوبو سره کلي مړه (وچه کلکه ځمکه) په شان (د دغه ژوندي کيدلو د ځمکې) راوبه ايستل شئ تاسې (هم بيا ژوندي له قبورو) .

الله پدې او په ګڼو نور آيتونو کې دېته اشاره کړېده چې مونږ به تاسې له زمکې څخه را توکوو (را شنه کوو) بيا رسول الله ﷺ ددې آيتونو تفصيل وکولو چې انسان به له زمکې څخه را شين کيږي او تخم به يې هغه هډوکی وي چې الله په انسان کې

[1] سورة زخرف آية ١١

ايښى دى چې هغه نه خاورې کيږي او نه زړيږي چې عجب الذنب ورته ويل کيږي .

## څوک چې په کوم حالت کې مړ شي په هماغه حالت کې به را پورته کيږي

رسول الله ﷺ فرمايي : **يبعث كل عبد على ما مات عليه** . [1]

ترجمة : الله به را پاڅوي هر بنده په هغه څه باندې چې دى وربانديې وفات شوى وي .

نو په کوم حالت کې چې انسان مړ شي په هغه حالت کې به را پورته کيږي هغه نېکبخت چې د الله په عبادت باندې وفات شي هغه به په داسې حالت کې را پاڅيږي چې مخ به يې رڼا کوي او خوشحال به وي او هغه چې د ګناه په حالت کې مړه کيږي پداسې حالت کې به را پاڅيږي چې په تيارو کې به وي ، شرميږي به او په خجالت کې به وي ..

او هغه کسان چې مؤمنان وي د هغوى هر لور ته به رڼا وي او هر اندام به يې ځلا او رڼا کوي الله د هغوى په اړه فرمايي : **يَوْمَ لا يُخْزِي اللَّهُ النَّبِيَّ وَالَّذِينَ ءَامَنُوا مَعَهُ نُورُهُمْ يَسْعَى بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَتْمِمْ لَنَا نُورَنَا وَاغْفِرْ لَنَا إِنَّكَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ** . [2]

ترجمة : په هغه ورځ کې چې وبه نه شرموى الله نبى او هغو کسانو لره چې ايمان ئې راوړى دى له هغه سره رڼا (رنړا) دوى به ځغلي وړاندې د دوى څخه او په ښي خوا د دوى وبه وائي دوى اى ربه څمونږ پوره کړه باقي ولره مونږ لره رڼا (رنړا) څمونږ او وبښه مونږ لره (ګناهونه

---

[1] رواه مسلم
[2] سورة التحريم آية ٨

ځمونږ) بېشکه ته پر هر شي باندی (چې اراده و فرمائې) ښه قادر ئې (چې ځینې هم دغه اتمام د نور او مغفرت دی) .

حضرت عبد الله بن مسعود فرمايي : **منهم من يكون نوره كالجبل ومنهم من يكون نوره كالنخلة، ومنهم من يكون نوره كالرجل القائم، ومنهم من يكون نوره على إبهامه يوقد مرة ويطفأ مرة، ومنهم من تحيط الظلمة به من كل ناحية .** [1]

ترجمة : په هغوی کې به ځینې داسې وي چې رڼا به یې لکه د غره داسې وي ، د ځینې رڼا به لکه د خورما ونه داسې وي ، د ځینې رڼا به لکه ولاړ سړی داسې وي او د ځینې رڼا به لږ وي او په ابهامه (بټه) ګوته به وي یو ځل به ورته رڼا کوي او بیا به ګل کیږي او ځینې به داسې وي چې له هر لوري نه به وربانديې تیارې را تاو شوې وي .

او پدې ورځ به د هرچا رڼا ته ضرورت وي او چاته چې الله پدې ورځ رڼا ورنه کړي له بل هیڅ لوري ورته رڼا نشي راتلی ددې وجې نه خو الله فرمايي :

**يَوْمَ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا انْظُرُونَا نَقْتَبِسْ مِنْ نُورِكُمْ قِيلَ ارْجِعُوا وَرَاءَكُمْ فَالْتَمِسُوا نُورًا فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُورٍ لَهُ بَابٌ بَاطِنُهُ فِيهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهُ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ .** [2]

ترجمة : (یاده کړه ای محمده ! هغه) ورځ چې وائي منافقان سړي او منافقانې ښځې هغو کسانو ته چې ایمان ئې راوړی دی (داسې چې) وګورئ مونږ ته (انتظار وکړئ) چې رڼا (رنړا) واخلو

---

[1] رواه الحاكم في المستدرک
[2] سورة الحديد آية ١٣

له رڼا (رڼړا) ستاسې نو وبه ویل شي دوی ته (تمسخرا) چې وګرځئ شاؤ خپلو ته پس ولټوئ رڼا (دنړا) پس وبه واهه شي په منځ د دغو (منافقانو او مؤمنانو) کې یو دیوال چې هغه لره به دروازه وی دننه طرف د هغې (دروازی کې به چې د جنت په جانب دی) رحمت وي (مؤمنانو لره) او د باندې طرف ته د هغه (چې جانب د منافقانو دی) له طرفه د هغه ځخه به عذاب وی .

په **قیامت** کې به یوه ډله خلق داسې وي چې کله را پاڅول شي نو په لوړ اواز سره به شروع وکوي وایي به **لبیک اللهم لبیک** ... زما لوستونکي ته معلومه ده چې دا به څوک وي؟ دا به هغه کس وي چې په حج یا عمره کې د احرام په حالت کې وفات شي رسول الله ﷺ د هغه کس په اړه وویل چې هغه له خپلې سپرلۍ نه غورځېدلی او وفات شوی وو **اغسلوه بماء وسدر وكفنوه في ثوبين ولا تحنطوه، ولا تخمروا رأسه، فإنه يبعث يوم القيامة ملبياً .** [1]

ترجمة : په اوبو او سدرو سره غسل ورکړئ او په دوو جامو کې یې په کفن کړئ حنوط پرې مه لګوئ او سر یې مه پټوئ بېشکه دی به د **قیامت** په ورځ د تلبیې په حالت کې را پاڅیږي .

او یوه ډله به داسې خلق وي چې پداسې حالت کې به را پاڅول کیږي چې یو شی به ترې بهیږي چې رنګ به یې رنګ د وینې وي او بوی به یې بوی د مسکو وي صحابه وو پوښتنه وکوله دا کسان څوک دي یا رسول الله ﷺ؟ رسول الله ﷺ ورته وویل دا د الله په لاره کې شهیدان دي او رسول الله ﷺ بیا فرمایي : **والذى نفسى بيده لا يكلم أحد في سبيل الله والله أعلم**

[1] رواه البخاري

بمن يكلم في سبيله إلا جاء يوم القيامة وجرحه يثعب دماً اللون لون الدم والعرف عرف المسك . [1]

ترجمة : زما د په هغه ذات قسم وي چې زما نفس د هغه په لاس کې دی هېڅوک نه زخمي کيږي د الله په لاره کې او الله ښه خبر دی چې څوک د الله په لاره کې زخمي کيږي مګر دا چې دا به راشي د **قيامت** په ورځ او له زخم څخه به يې وينې څاڅي رنګ به يې د وينې رنګ وي او بوی به يې د مسکو بوی وي .

يوه ډله خلق به پداسې حالت کې را پورته شي چې نېغ به نشي درېدلی يو لور او بل لورته به غورځيږي او په تکليف کې به وي تاسې ته معلومه ده چې دا به څوک وي؟

دا به سود خواره وي د کومو په اړه چې الله فرمايي : **الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا لا يَقُومُونَ إِلا كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا إِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبَا وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا .** [2]

ترجمة : هغه کسان چې خوري (يعنی اخلي) سود (له خلقو) نه پاڅيږي دوی (د **قيامت** په ورځ کې) مګر (پاڅيږی داسی) لکه چې پاڅيږي هغه څوک چې حواس ئې خراب کړي وي شيطان (د عربو په ګومان) له (خپله) اثره ــ دا (حال د دوی) په سبب د دي دی چې دوی ويل چې بېشکه هم دا خبره ده چې تجارت خو هم داسې دی (په جواز کې) لکه سود حال دا چې حلال کړی دی الله تجارت او حرام کړی ئې دی سود .

---

[1] رواه البخاري
[2] سورة البقرة آية ٢٧٥

یو بل کس به وي چې هغه به پداسې حالت کې روان وي چې ماشومان به ورځخه تاو وي څوک به یې وهي ، څوک به یې ټېله کوي ، څوک به یې کش کاږي او دده لپاره به هېڅ لاره نه وي چې لدې ماشومانو ځخه ځان خلاص کړي دا به څوک وي؟

دا به هغه کس وي چې د یتیمانو مالونه یې خوړلې وي هغه چې د چا یتیمان ورته پاتې وي ددې په ځای چې د هغوی د مال ساتنه د هغوی لپاره وکوي ده به ترې خوړلې وي او یا یې څه مال زمکه او جائداد ورڅخه غصب کړی او نیولی وي دا هغه کسان دي چې الله یې په اړه فرمایي :
**إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَى ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا .** [1]

ترجمة : بیشکه هغه کسان چې خوری دوی مالونه د یتیمانو په ظلم سره (بې له شرعی اذنه) خبره دا ده چې خوري دوی په (ډکو) ګېډو خپلو سره اور ، او ژر به ورسیږي (ننه به وځي) دوی اور سخت ته .

او یوډول ښځې به وي چې د الله د لعنت ځادرونه به یې په سرونو وي لاسونه به یې په سرونو باندې ایښي وي او چیغې به وهي او فریاد به کوي په منډو به روانې وي دا ښځې به څوک وي؟

رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې دا به هغه ښځې وي چې په مړیو باندې ژاړي ، مخونه وهي ، په غم کې جامې شکوي ، په سر باندې خاورې شیندي او نور د شریعت خلاف کارونه کوي .

ځینې خلق به پداسې حالت کې را ژوندي کول کیږي چې په لاسونو کې به یې د شرابو پیالې وي ..

---

[1] سورة النساء آیة ۱۰

ځيني به پداسې حالت کې را پاځول کيږي چې په شا باندې به يې د غلا مال را پورته کړی وي او په تکليف به ورسره روان وي ..

حافظ ابن کثير پدې اړه فرمايي : **لقد أجرى الله الكريم عادته بكرمه أن من عاش على شيء مات عليه، ومن مات على شيء بعث عليه.**

ترجمة : الله په خپل کرم باندې داسې عادت جاري کړی دی چې څوک په ژوند کې هرڅه کوي نو په هماغه باندې مړ کيږي او څوک چې په کوم حالت کې مړ شي نو په هماغه حالت کې به بېرته را پورته کيږي .

## په کائناتو کې به بدلون راشي په زمکه کې

د ټولو کائناتو په څېر به زمکه هم په خپل حالت پاتې نشي ، زلزلې به وربانديې راشي ، په حرکت کې به راشي ، هغه څه چې په زمکه کې د ننه دي بهر ته به را وغورځوي او داسې نور ... الله فرمايي :

١ . (إِذَا زُلْزِلَتِ الأَرْضُ زِلْزَالَهَا * وَأَخْرَجَتِ الأَرْضُ أَثْقَالَهَا) . [1]

ترجمة : کله چې وخوځوله شی ځمکه په خوځېدلو سختو خپلو سره . او د باندې راوباسي ځمکه درانه شيان له خپله مينځه .

٢ . (وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الجِبَالَ وَتَرَى الأَرْضَ بَارِزَةً). [1]

[1] سورة الزلزلة آية ١ ـ ٢

ترجمة : او (ياد كړه) هغه ورځ چې وران به كړو غرونه او ګورې به ته (اى انسانه !) ځمكه ښكاره (صاف ميدان) .

٣ . (يَوْمَ تُبَدَّلُ الأَرْضُ غَيْرَ الأَرْضِ). [2]

ترجمة : (ياد كړه) هغه ورځ چې بدل به كړه شي (په كې) دغه ځمكه په بلې ځمكې سره .

٤ . (يَوْمَ تَشَقَّقُ الأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا). [3]

ترجمة : په هغه ورځ چى وچوي ځمكه له دوى څخه په چابكي سره دغه (ژوندي كول) ټول دي پر مونږ باندى ډير آسان .

٥ . (كَلاَّ إِذَا دُكَّتِ الأَرْضُ دَكًّا دَكًّا). [4]

ترجمة : نه ده داسې او مه كوئ (دغسې بد كارونه) كله چې وټكوله ماته شي ځمكه په ټكولو ماتولو سختو سره .

٦ . (إِذَا رُجَّتِ الأَرْضُ رَجًّا). [5]

ترجمة : كله چې وخوځولى شي ځمكه په خو ځولو سختو سره .

٧ . وَإِذَا الْأَرْضُ مُدَّتْ (3) وَأَلْقَتْ مَا فِيهَا وَتَخَلَّتْ (4) وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ (5) . [6]

---

[1] سورة الكهف آية ٤٧
[2] سورة إبراهيم آية ٤٨
[3] سورة ق آية ٤٤
[4] سورة الفجر آية ٢١
[5] سورة الواقعة آية ٤
[6] سورة الانشقاق

ترجمة : او كله چې ځمكه وغوړوله شي . او د باندى وغورځوي هغه چې دننه پكې وى له مړيو او خزائنو څخه او ښه خالي شي له ټولو اشياؤ نه . او واورى ومني امر حكم د رب خپل او (دا ځمكه) لائق وړ ده (د هغه الله حكم منلو ته) .

## په بحرونو كې

د الله د مخلوقاتو يو مهم مخلوق بحرونه به هم په خپل حالت باندې پاتې نشي او پدې كې به هم مختلف ډول تغيرات راشي الله فرمايي :

۱ . (وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ) . [1]

ترجمة : او كله چې بحرونه سيندونه سره ګډ كړل شى (تريخ له خواږه سره يا ډير سخت ګرم شي يا وچ كړل شي) .

۲ . (وَالْبَحْرِ المَسْجُورِ). [2]

ترجمة : او (قسم دى) په بحر سيند تود يا ډك كړل شوي باندې .

۳ . (وَإِذَا الْبِحَارُ فُجِّرَتْ). [3]

ترجمة : او په هغه وقت كې چې دريابونه ګډ شي (يو له بله سره او ټول يو درياب شى) .

---
[1] سورة التكوير آية ٦
[2] سورة الطور آية ٦
[3] سورة الانفطار آية ٣

# په غرونو کې

غرونه به میده میده شي او لکه وریځ داسې به لاړ شي او ختم به شي ، باد به یې یو بل طرف ته وړي لکه څوک چې په کوم شي باندې لوښې کوي او پدې ورځ به غرونه هېڅ وزن نه لري باد به یې لکه ګرد داسې یوسي او ختم به شي الله فرمایي :

١ . (وَإِذَا الجِبَالُ سُيِّرَتْ). [1]

ترجمة : او کله چې غرونه روان کړل شی .

٢ . (وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الجِبَالَ). [2]

ترجمة : او (یاد کړه) هغه ورځ چې روان به کړو غرونه .

٣ . (وَتَسِيرُ الجِبَالُ سَيْرًا). [3]

ترجمة : او روان به شی غرونه په روانیدلو سره .

٤ . (وَسُيِّرَتِ الجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا). [4]

ترجمة : او روان به کړل شی غرونه نو شی به لکه سراب (شګی ځلیدونکې ځمکه لکه اوبه) .

٥ . (وَتَكُونُ الجِبَالُ كَالْعِهْنِ المَنفُوشِ). [5]

---

[1] سورة التكوير آية ٣
[2] سورة الكهف آية ٤٧
[3] سورة الطور آية ١٠
[4] سورة النبأ آية ٢٠
[5] سورة القارعة آية ٥

ترجمة: او وبه ګرځي غرونه (له هيبته په دغې ورځې کې) لکه وړی رنګينې شيندلې شوې (د نداف په لينده) .

٦ . (وَإِذَا الجِبَالُ نُسِفَتْ). [1]

ترجمة: او کله چې غرونه والوځول شي (وايستل شي له ځايونو خپلو نه) او روان شی .

٧ . (يَوْمَ تَرْجُفُ الأَرْضُ وَالجِبَالُ وَكَانَتِ الجِبَالُ كَثِيبًا مَّهِيلاً). [2]

ترجمة: (دا واقع عذابونه په هغې) ورځې کې دي چې وخوځيږی ولړزيږي ځمکه او غرونه او شي به دا غرونه لکه د شګو ډيرې روانې شوې (تيت پيت (خواره واره) له ډيره هيبته) .

٨ . (وَبُسَّتِ الجِبَالُ بَسًّا * فَكَانَتْ هَبَاءً مُّنبَثًّا). [3]

ترجمة: او وريژول شی غرونه په ريژولو سختو سره (داسې چې ټوټې ټوټې شي) نو شي به دا غرونه يوه دوړه خوره کړل شوې .

٩ . (وَحُمِلَتِ الأَرْضُ وَالجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَاحِدَةً). [4]

ترجمة: او پورته کړه شی ځمکه او غرونه (له خپلو ځايونو) نو مات به کړل شي دا دواړه (ټوټې ټوټې) په ماتولو يوه سره.

## په اسمان کې

---

1 سورة المرسلات آية ١٠

2 سورة المزمل آية ١٤

3 سورة الواقعة آية ٥ ـ ٦

4 سورة الحاقة آية ١٤

اسمان به سورى سورى شي لکه خلاصې دروازې داسې به وي يعني اسمان به سره و ځيرل شي لکه خلاصې کړکۍ داسې به ښکاره کيږي او نور ډير تغيرات به پکې راشي لکه الله چې فرمايي :

١ . (إِذَا السَّمَاءُ انشَقَّتْ). [1]

ترجمة : کله چې آسمان شق ځيرى شى وچوى .

٢ . (إِذَا السَّمَاءُ انفَطَرَتْ). [2]

ترجمة : او کله چې آسمان وچوى ځيرى شى .

٣ . (وَفُتِحَتِ السَّمَاءُ فَكَانَتْ أَبْوَابًا). [3]

ترجمة : او پرانستلى ځيرې به شي آسمان (په دغه ورځ د **قيامت** کې) نو شي به دروازې .

٤ . (وَإِذَا السَّمَاءُ فُرِجَتْ). [4]

ترجمة : او کله چې آسمان ځيرې کړل شي .

٥ . (يَوْمَ نَطْوِي السَّمَاءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ). [5]

ترجمة : (ياد کړه اى محمده !) هغه ورځ چې راونغاړو آسمان لکه نغښتل د سند ، طومار دپاره د ليکل شويو کاغذونو لکه چې ابتداء کړي .

---

1 **سورة الانشقاق آية ١**
2 **سورة الانفطار آية ١**
3 **سورة النبا آية ١٩**
4 **سورة المرسلات آية ٩**
5 **سورة الانبياء آية ١٠٤**

٦ . (يَوْمَ تُبَدَّلُ الأَرْضُ غَيْرَ الأَرْضِ وَالسَّمَاوَاتُ). [1]

ترجمة : او كله چې زمكه په بله زمكه بدله شي او اسمانونه (په نورو اسمانونو بدل شي) .

٧ . (يَوْمَ تَمُورُ السَّمَاءُ مَوْرًا). [2]

ترجمة : هغه ورځ چې وخوځيږي آسمان په خوځېدلو سره .

٨ . (يَوْمَ تَكُونُ السَّمَاءُ كَالمُهْلِ). [3]

ترجمة : هغه ورځ (به واقع شی پر منكرانو عذاب) چې ګرځي آسمان په شان د قلعې ويلى شوى (تورى ختې د تيلو) ځېنو د (مهل) ترجمه د تيلو په ختو سره كړيده .

٩ . (يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ). [4]

ترجمة : په هغه ورځ چې راشى دا آسمان په لوګي ښكاره سره .

١٠ . (فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ). [5]

ترجمة : وبه ګرځى ګل سور رنګ لكه سرې ثرمنې (يا د زيتون تيل) .

١١ . (وَإِذَا السَّمَاءُ كُشِطَتْ). [6]

---

[1] سورة ابراهيم آية ٤٨
[2] سورة الطور آية ٩
[3] سورة المعارج آية ٨
[4] سورة الدخان آية ١٠
[5] سورة الرحمن آية ٣٧
[6] سورة التكوير آية ١١

ترجمة : او کله چې آسمان د پوستکی په شان وويستلی شی (له خپله ځايه).

او داسې نور حالتونه به اسمان ته ور پېښ شي دا اوس چې اسمان زمونږ لپاره د چت کار کوي او د الله يو عظيم الشان مخلوق دی دا به بيا سوری سوری ښکاره کيږي او مختلف ډوله تغيرات به پکې راځي.

## لمر، سپوږمی او ستوري

د الله دا ښائسته مخلوقات به هم په عادي حالت پاتې نشي او په دوی کې به هم تغيرات راشي لمر به پيکه شي ، رڼا به يې ورکه شي ، ستوري به سره بې ترتيبه شي لکه شکېدلې مری لمر او سپوږمی به سره يو ځای شي يعني دا اوسنی منظم نظام به يې ختم شي او داسې نور ...

الله فرمايي :

١ . (فَإِذَا النُّجُومُ طُمِسَتْ). [1]

ترجمة : نو کله چې ستوری تور شي رڼا (رڼړا) نور يې ورک شي.

٢ . (وَإِذَا النُّجُومُ انكَدَرَتْ). [2]

ترجمة : او کله چې ستوري خړ شي (يا راولويږي په ځمکه).

٣ . (وَإِذَا الْكَوَاكِبُ انتَثَرَتْ). [1]

---

[1] سورة المرسلات آية ٨

[2] سورة التكوير آية ٢

ترجمة : او کله چې ستوري راولويږي تيت په تيت (ګډوډ) شي.

٤ . (إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ). [2]

ترجمة : کله چې (د) لمر (رڼا) ونغښتله شي (نور ئې لاړ شي).

٥ . (وَخَسَفَ الْقَمَرُ * وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ). [3]

ترجمة : او توره شي سپوږمۍ (رڼا (رنړا) ئې لاړه شي). او جمعه شي لمر او سپوږمۍ.

## حشر

کله چې ټول خلق له قبرونو څخه را پورته شي دوی به د حشر ميدان خوا ته روان وي چېرته به چې د الله په وړاندې دريږي دې عمل ته حشر (را ټولېدل) وايي او د **قيامت** په نومونو کې يو نوم الحشر او يا يوم المحشر هم ددې ټولېدلو له امله دی کله چې د الله خوښه شي نو خلق به را ژوندي کړي او ټولو ته به لار ښونه وکوي چې هغوی د حشر ميدان لور ته په منډه منډه ځانونه ورسوي او چې کله خلق له قبرونو څخه را پورته شي ټول خلق به چُپ وي او په خاموشي او وېره سره به روان وي دا به ډېر سخت حالت وي او ددې حالت ذکر په متعددو ځايونو کې په قرآن کريم کې شوی دی او له مختلفو اړخونو څخه يې آياتونو مونږ ته ذکر ددې لپاره کړی دی چې دا حالت او دا صورت خپلې مخې ته کېږدو او ځانونه اوس ورته تيار کړو مخکې لدې چې مونږ قبر ته

---

[1] سورة الانفطار آية ٢
[2] سورة التكوير آية ١
[3] سورة القيامة آية ٨ ـ ٩

ننوزو او هلته بیا صرف انتظار ویستلی شو نور به مو هېڅ په وس نه وي پوره باید ددې ورځې لپاره تیاری وکوو.

الله د حشر په اړه فرمایي : **يَوْمَئِذٍ يَتَّبِعُونَ الدَّاعِيَ لاَ عِوَجَ لَهُ وَخَشَعَتِ الأَصْوَاتُ لِلرَّحْمَنِ فَلا تَسْمَعُ إِلا هَمْسًا** . [1]

ترجمة : په دغه ورځ (د **قيامت**) کې به متابعت و کړي (دا مخلوق د بلنې) د بلونکي نه به وي کوږوالی له دغې (بلنې د بلونکي څخه) ، او چُپ به شي غږونه (له ډېره هیبته) دپاره د رحمن پس نه به اورې ته مګر کښهار د قدمونو.

په بل ځای کې الله فرمایي : **يَوْمَ يَخْرُجُونَ مِنَ الأَجْدَاثِ سِرَاعًا كَأَنَّهُمْ إِلَى نُصُبٍ يُوفِضُونَ** . [2]

ترجمة : هغه ورځ چې بهر راویستل شي دوی له قبرونو څخه چې ځغلېدونکي به وي لکه چې دوی په طرف د نښو چابک ځغلي.

په بل ځای کې الله فرمایي : **فَتَوَلَّ عَنْهُمْ يَوْمَ يَدْعُو الدَّاعِ إِلَى شَيْءٍ نُكُرٍ (6) خُشَّعًا أَبْصَارُهُمْ يَخْرُجُونَ مِنَ الأَجْدَاثِ كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ مُنْتَشِرٌ (7) مُهْطِعِينَ إِلَى الدَّاعِ يَقُولُ الْكَافِرُونَ هَذَا يَوْمٌ عَسِرٌ** . [3]

ترجمة : نو مخ وګرځوه ته له هغوی څخه . (او یاد کړه هغه) ورځ چې راوبولي (دوی لره) بلونکی یو شي نااشنا ته (چې حساب او جزاء د اعمالو ده). حال دا چې ویریدونکې خړې خوارې به وي ستر ګې د دوی . را وځي به دوی له قبرونو څخه ګواکي دوی به ملخان مچان وي خواره

---

1 سورة طه آية ١٠٨
2 سورة المعارج آية ٤٣
3 سورة القمر آية ٦:٨

واره چې تلوار کوونکي به وي په لوري د بلونکي خپل . وائي به کافران دا ورځ ده ډېره سخته .

پدې آيت کې الله د ملخانو سره خلق مشابه کړل ځکه دوی به هم ډېر په زمکه کې خپاره او له هره ځايه به راتلونکي وي .

حضرت كعب الاحبار فرمايي د **قيامت** په ورځ به الله يوې ملکې ته امر وکوي چې هغه په زوره اواز وکوي چې اې زړو هډوکو اې خپاره شويو اندامونو الله تاسې ته امر کوي چې د فيصلې لپاره را ټول شئ نو له هرې خوا به په زمکه کې قبرونه و شليږي او مړي به ترېنه را پاڅيږي د محشر په لور به روان شي الله د هغه حالت په اړه فرمايي : **وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِنْ مَكَانٍ قَرِيبٍ (41) يَوْمَ يَسْمَعُونَ الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ ذَلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ (42) إِنَّا نَحْنُ نُحْيِي وَنُمِيتُ وَإِلَيْنَا الْمَصِيرُ (43) يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا ذَلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ(٤٤).** [1]

ترجمة : او واوره غوږ کېږده (ای محمده) هغه ورځ چې آواز و کړي آواز کوونکی (اسرافيل) له ځای نږدې نه هغه ورځ چې واوري (دغه خلق) سخته چغه د (اسرافيل) په حقه سره دا (ورځ د آواز) ورځ د وتلو ده (له قبورو) نه. بېشکه هم دا مونږ ژوندي کول کوو او مړه کول کوو او شته خاص مونږ ته راګرځېدل (دټولو امورو). په هغه ورځ چې وچوي ځمکه له دوی څخه په چابکي سره دغه (ژوندي کول) ټول دي پر مونږ باندې ډېر آسان.

په بل ځای کې الله فرمايي :

---

[1] **سورة ق**

يَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ فَتَأْتُونَ أَفْوَاجًا (18) . [1]

ترجمة : هغه ورځ چې وپو کل شي (دوهم ځلې) په صور (شپیلۍ) کې نو راځئ به تاسې ډلې ډلې (له قبرونو نه موقف ته).

او لدې حکم نه هېڅوک هم مستثنی نه دي چې کله د الله حکم وشي نو ټول مخلوقات به محشر ته جمع کېږي الله فرمايي : وَمَا مِن دَآبَّةٍ فِي الأَرْضِ وَلاَ طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلاَّ أُمَمٌ أَمْثَالُكُم مَّا فَرَّطْنَا فِي الكِتَابِ مِن شَيْءٍ ثُمَّ إِلَى رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ (38) . [2]

ترجمة : او نشته هيڅ (حيوان خوځېدونكى تلونكى په ځمكه كې او نه هېڅ مارغه چې الوځي په دواړو وزرونو خپلو (په هوا كې) مگر (ټول سره) امتونه (مخلوقات) دي په شان ستاسې نه وو پرېښى مونږ په كتاب (لوح محفوظ) كې هېڅ شى (بلكه گرد (ټول) ليكلي دي مونږ) بيا به (دا گرد(ټول) ) رب خپل ته ورټول كړل شي (د حساب او جزاء دپاره) .

او كله چې الله وغواړي دا ټول مخلوقات به جمع كړي او د الله لپاره پكې هېڅ مشكل نشته څرنگه يې چې پيدا كړي دي ، څرنگه يې چې ساتلي دي په همدې ډول يې په وس كې شته چې دا ټول مخلوقات خپل حضور ته ور ټول كړي الله فرمايي : وَمِنْ آيَاتِهِ خَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَثَّ فِيهِمَا مِن دَابَّةٍ وَهُوَ عَلَى جَمْعِهِمْ إِذَا يَشَاء قَدِيرٌ (29) . [3]

---

1 سورة النبا
2 سورة الانعام
3 سورة الشورى آية ٢٩

ترجمة : او ځيني له دلا ئلو (د قدرت) د الله پيدا کول د آسمانونو او د ځمکې (او د مافيها) دي او (پيدا کول) د هغو اشياؤ دي چې خواره کړي ئې دي په آسمانونو او په ځمکه کې له ذی روح خوځېدونکيو. او دغه (الله ) په جمع کولو (بيا راټولولو) د دوی (محشر ته) هر کله چې اراده وفرمائي ښه قادر دی.

او داسې نور په متعددو ځايونو کې ددې حالت ذکر شوی دی چې خلق ټول د الله حضور ته جمع کيږي زه يې د خپل کتاب د مختصر ساتلو له امله نه را نقل کوم .

## د خلقو حالتونه

دا خلق چې له قبرونو څخه را پاڅيږي د دوی به مختلف حالتونه وي او هغه حالتونه يې ټول پدې دنيا کې د عملونو په بناء وي د مثال په ډول :

## ځيني خلق به ړانده وي

د ځيني خلقو نظر به نه وي په ړندو سترګو به منډې وهي کله به ځي او کله به غورځيږي او له هېڅ شي څخه به ځان نشي ژغورلی او لکه پدې دنيا کې چې يو انسان ړوند وي او هغه په منډه کولو مجبور کړل شي چې څومره تکليف به وي ورته په هغه ورځ به تردې هم زيات وي ورته الله فرمايي : وَمَنْ أَعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَإِنَّ لَه مَعِيشَةً ضَنكا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَى (124) قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِي أَعْمَى وَقَدْ كُنتُ بَصِيراً (125) قَالَ كَذَلِكَ أَتَتْك آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا وَكَذَلِكَ اليَوْمَ تُنسَى (١٢٦) [1]

---

[1] سورة طه آية ١٢٤:١٢٦

ترجمة : وبه وائی (دغه ړوند کافر) ای ربه ځما ولې دی پاڅولم (راوستلم) زه ړوند حال دا چې په تحقیق زه وم بینا (په دنیا کې). وفرمایل (الله ) هم داسې ؤ (لکه چې ته ئې وائې) خو راغلي وو تاته آیتونه ځمونږ پس هېر کړل تا هغه او په مثل (دهغو هېرولو ستا) نن ورځ هېر به کړ شې ته هم پرېښود به شې ته په عذاب کې.

## ځینې خلق به په مخونو ځي

ځینې خلق به داسې په تکلیف کې روان وي چې د پښو په ځای به یې مخونه په زمکه باندې ایښي وي او کش کوي به یې او پدې توګه به اورږد منزلونه لنډوي الله فرمایي : **وَمَن يَهْدِ اللّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُمْ أَوْلِيَاء مِن دُونِهِ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى وُجُوهِهِمْ عُمْيًا وَبُكْمًا وَصُمًّا مَّأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنَاهُمْ سَعِيرًا** .[1]

ترجمة : او هر هغه چاته چې لیاره وښودله الله نو همغه د سمې لیارې موندونکی دی، او هر څوک چې ئې ګمراه کړي (الله ) نو له سره به نه مومي ته دوی ته نور دوستان بې له دغه (الله څخه چې سمه لیاره وروښيي)، او راجمع به کړو (مونږ) دوی لره په ورځ د **قیامت** کې (نسکور تلونکي په سبب د بدو عملونو د دوی) پر مخونو خپلو چې ړانده او ګونګیان به وي او کاڼه به وي (به سبب د بدو اعمالو خپلو) ځای د دوی به دوزخ وي ، هر کله چې غلې شي (لمبې د دوزخ) زیات به کړو دوی ته تیز اور .

[1] سورة الاسراء آیة ۹۷

له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې دا خلق به په مخونو باندې څنګه ځي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل :
څنګه چې الله دوی ته قدرت ورکولی شي چې په پښو باندې لاړ شي همداسې قدرت به ورکړي چې په مخونو باندې لاړشي .

دا خلق به څوک وي چې په مخونو باندې به لداسې تکليف سره محشر ته ځي؟

امام طبريسي په مجمع البيان کې فرمايي : دا د مکې کفار دي چې هغوی به ويل چې محمد او د هغه ملګري بد ترين خلق دي نو الله په آخرت کې دوی ته دا سزا ورکوي چې د هر ډول سپکاوي او تکليف نه به ډکه وي .

## ځينې به لکه مېږيان داسې وي

يوه ډله خلق به داسې هم وي لکه واړه مېږيان په زمکه به روان وي او نور خلق به يې تر پښو لاندې کوي او هر ډول ذلت او خواري به د دوی په برخه وي تاسې ته معلومه ده چې دا کسان څوک دي؟

دا هغه کسان دي چې په دنيا کې نور خلق ورته سپک ښکاره کېدل او تکبر به يې کاوه الله به په آخرت کې دا خواري د دوی په برخه کړي رسول الله ﷺ فرمايي : **يحشر المتكبرون يوم القيامة كأمثال الذر(النمل) على صورة رجال ونساء يدوسونهم الناس باقدامهم يغشاهم الذل .**

ترجمة : کبر کونکي به د **قيامت** په ورځ لکه مېږيان داسې را ټوليږي د دوی نارينه او ښځې خلق به يې تر خپلو پښو لاندې کوي او په ذلت او خواري کې به پټ وي .

# ځينې به بل چا تر لاس را نيولى وي

يو کس به داسې وي چې بل چا به تر لاس نيولى وي را به يې ولي تردې چې عرش ته يې را نېږدې کړي او دى به له هغه څخه ځان نشي خلاصولى تاسې ته معلوم دى چې دا به څوک وي؟ دا به قاتل وي رسول الله ﷺ فرمايي : **يجيء المقتول بالقاتل يوم القيامة ناصيته ورأسه بيده -القاتل يحمل رأسه بيده، وأوداجه تشخب دماً- يقول: يا رب! هذا قتلني، حتى يدنيه من العرش.** [1]

ترجمة : مقتول به قاتل راولي د **قيامت** په ورځ سر به يې په لاس کې وي او د قاتل به دده سر په لاس کې وي او د هغه له رګونو څخه به وينې باديږي وايي به اې ربه ! دې کس زه ووژلم را به يې ولي تردې چې عرش ته يې را نېږدې کړي .

---

[1] رواه الترمذي

## له ځينو سره به رڼا وي

ځينې به داسې کسان وي چې هغوی له قبرونو څخه را پاڅيږي له هغوی سره به رڼا وي د هغوی په لاسونو کې به وي او د هغوی په مخه کې به رڼا وي د خپلې رڼا په مرسته به روان وي او هېڅ مشکل به ورته نه وي البته دا رڼا ګانې بيا د عملونو په بنياد فرق کوي د چا ډېره زياته او د چا کمه پدې اړه مخکې د حضرت عبد الله بن مسعود يو اثر تېر شوی وو .

الله ددې کسانو په اړه فرمايي : **يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ يَسْعَى نُورُهُم بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِم بُشْرَاكُمُ الْيَوْمَ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ .** [1]

ترجمة : (ياده کړه ای محمده!) هغه ورځ (د **قيامت**) چې وينی ته مؤمنان سړی او مؤمنانې ښځې چې ځغلي به رڼا (رڼرا) د دوی مخکې له دوی څخه او له ښي خوا د دوی څخه. ( او وبه ويل شي دوی ته چې) زيری د تاسې نن ورځ دي (ننوتل په) جنت چې بهيږی له لاندې (د مانيو او ونو) د هغو (څلور قسمه) ويالې تل به وي دوی په هغو کې دغه دی هم دغه بری مونډل ډير لوی.

## په محشر کې دريدل

خلق به ټول را ټول شي او په يوه اوږده ورځ کې به د الله په وړاندې د حساب لپاره ودريږي داسې ورځ چې اوږده به يې پنځوس زره کاله وي او پدې ورځ به د خلقو مختلف حالتونه وي د ځينې رواياتو له مخې دا پنځوس زره کاله به په يو مؤمن باندې داسې تېر شي لکه ده چې په دنيا کې

[1] سورة الحديد آية ١٢

دوه سپک او لنډ رکعته مونځ کاوه او د نورو خلقو او ګناهګارانو لپاره به دا یوه داسې ورځ وي چې تردې به یې مخکې په سختي او تکلیف کې سارى نه وو لیدلى ټول خلق به د محشر په میدان کې ودریږي که هغه مخکني وي او که وروستني لکه الله چې فرمایي : قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ وَالْآَخِرِينَ *لَمَجْمُوعُونَ إِلَى مِيقَاتِ يَوْمٍ مَعْلُومٍ .[1]

ترجمة : ووایه ته (اى محمده ! دوى ته) بېشکه چې ړومبني (خلق) او وروستني (خلق) به خامخا ګرد به ټول کړل شي وقت د ورځې معلومې ته (چې **قيامت** دى) .

په بل ځاى کې الله فرمایي : إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآَيَةً لِمَنْ خَافَ عَذَابَ الْآَخِرَةِ ذَلِكَ يَوْمٌ مَجْمُوعٌ لَهُ النَّاسُ وَذَلِكَ يَوْمٌ مَشْهُودٌ .[2]

ترجمة : بېشکه په دې (مذکوره وو قصو) کې خامخا ډیر عبرت دى دپاره د هغه چا چې ویریږي له عذابه د آخرت څخه، دغه ورځ د **قيامت** داسې یوه ورځ ده چې جمع به کړل شي په دې کې ټول خلق او دا ورځ ده چې حاضر به شي ورته ټول مخلوقات .

په بل ځاى کې الله فرمایي :

أَيْنَ مَا تَكُونُوا يَأْتِ بِكُمُ اللَّهُ جَمِيعًا .[3]

ترجمة :هر چیرته چې یئ (تاسې) رابه ولي تاسې الله ټول (په **قيامت** کې دپاره د جزاء د اعمالو) .

---

[1] سورة الواقعة آية ٤٩-٥٠
[2] سورة هود آية ١٠٣
[3] سورة البقرة آية ١٤٨

په بل ځای کې الله فرمايي :

وَحَشَرْنَاهُمْ فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ أَحَدًا . [1]

ترجمة : او راجمع به كړو (مونږ) دوى (يعنى خلق) نو پرې به نه ږدو له دوى نه يو تن هم (نه له اولينو او نه له آخرينو) .

په بل ځای کې الله فرمايي :

ۣنْ كُلُّ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ إِلَّا آتِي الرَّحْمَنِ عَبْدًا * لَقَدْ أَحْصَاهُمْ وَعَدَّهُمْ عَدًّا . [2]

ترجمة : نه دى ټول هغه (ګرد شيان) چې دي په آسمانونو کې او ځمکه کې مګر راتلونکي دي رحمن ته په دغه حال کې چې بنده وي هر يو خامخا په تحقيق احاطه كړې ده (الله ) دوى لره (له جهته دعلم او قدرت) .

ددې ورځې په اړه الله فرمايي :

يَاأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ إِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٌ * يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّا أَرْضَعَتْ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى النَّاسَ سُكَارَى وَمَا هُمْ بِسُكَارَى وَلَكِنَّ عَذَابَ اللَّهِ شَدِيدٌ . [3]

ترجمة : اى خلقو ځان وساتئ (وويريږئ) تاسې له (عذابه د) رب خپل، بېشکه چې زلزله د **قيامت** (يو) شى دى ډير لوى. په هغه ورځ چې وويني تاسې هغه چې غافله به شي هره تى وركوونكې (د دې ورځى له هيبت څخه) له هغه وړوكي چې تى

---

[1] سورة الكهف آية ٤٧
[2] سورة مريم آية ٩٣-٩٤
[3] سورة الحج آية ١-٢

ورکوي هغه ته او کې به يردي هره مېرمن حامله (اميدواره) حمل (بچي) خپل او وبه وينې ته خلق بى هوشه (له ډير هيبت نه ) حال دا چې نه به وي په واقع سره دوى بې هوشه ولېکن عذاب د الله دى ډير سخت (نو د **قيامت** د ورځې له ويرې نه به بې هوشه وى).

په بل ځاى کې الله فرمايي :

**يَاأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يوماً لاَ يَجْزِي وَالِدٌ عَنْ وَلَدِهِ وَلاَ مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَنْ وَالِدِهِ شيئاً إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَلاَ تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا وَلاَ يَغُرَّنَّكُمْ بِاللَّهِ الْغَرُورُ .** [1]

ترجمة : اى خلقو ! وويريږئ تاسې (ټول له عذابه) د رب خپل او وويريږئ تاسې له هغې ورځې چې نه به شي دفع کولى عذاب هېڅ پلار له زوى خپل او نه هېڅ زوى (داسې وي) چې هغه دفع کونکى شي له پلار خپل څخه کوم شى (څه عذاب) بېشکه وعده د الله رښتيا ده (د بعث ، حساب ، د جزا وعده) پس نه دې غره کوي تاسې خامخا دغه ژوندون لږ خسيس ! او نه دې غره کوي خامخا تاسې په (عفو او کرم د) الله هېڅ غره کوونکى .

## ملائک به را ښکته شي

خلق به را ټول شي او د حساب لپاره به په ميدان کې ودريږي ملائک به را ښکته شي د ملائکو د ښکته کېدلو قصه رسول الله ﷺ په يوه حديث کې کړې ده هغه مبارک فرمايي : **فأرجع فأقف مع الناس، فبينما نحن وقوف، إذ سمعنا من السماء حساً شديداً، فهالنا فينزل أهل السماء الدنيا بمثلي من في الأرض من الجن والإنس،حتى إذا دنوا**

[1] سورة لقمان آية ٣٣

من الأرض، أشرقت الأرض بنورهم وأخذوا مصافهم وقلنا لهم: أفيكم ربنا ؟ فيقولون: لا وهو آت ثم ينزل أهل السماء الثانية بمثلي من نزل من الملائكة، وبمثلي من فيها من الجن والإنس، حتى إذا دنوا من الأرض، أشرقت الأرض بنورهم وأخذوا مصافهم. وقلنا لهم: أفيكم ربنا ؟ فيقولون: لا. وهو آت، ثم ينزلون على قدر ذلك من التضعيف حتى ينزل أهل السماوات السبع.

ترجمة : بیا به زه له خلقو سره ودرېږم کله چې مونږ ولاړ وو د اسمان له خوا به یو سخت اواز واورو د زمکې د اسمان نه به په زمکه کې د موجوده ټولو انسانانو او پېریانو دوه چنده مخلوق را ښکته شي تردې چې زمکې ته را نېږدې شي زمکه به د دوی په رڼا باندې رڼا شي او دوی به په خپل صف کې ودرېږي مونږ به ورته ووایو زمونږ رب په تاسې کې دی؟ دوی به ووایي نه هغه وروسته راتلونکی دی بیا به د دوهم اسمان فرښتې د اول اسمان په دوه چنده او په زمکه کې د پېریانو او انسانانو په دوه چنده باندې را ښکته شي تردې چې د زمکې اسمان ته را ورسیږي زمکه به یې په رڼا باندې رڼا شي مونږ به ورته ووایو : زمونږ رب په تاسې کې دی؟ دوی به ووایي نه هغه وروسته راتلونکی دی بیا په همدې ترتیب به په څو چنده باندې زیاتې فرښتې را ښکته شي تردې چې د اوو اسمانونو اهل زمکې ته را ښکته شي .

الله د ملائکو د را ښکته کېدلو په اړه فرمایي :

وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَاءُ بِالْغَمَامِ وَنُزِّلَ الْمَلَائِكَةُ تَنزِيلًا .[1]

ترجمة : او هغه ورځ چې اسمان په وریځ سره سره و شکیږي او ملائکې را ښکته شي .

---

[1] سورة الفرقان آية ٢٥

په بل ځای کې الله فرمایي : **هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا أَنْ يَأْتِيَهُمْ اللَّهُ فِي ظُلَلٍ مِنْ الْغَمَامِ وَالْمَلَائِكَةُ وَقُضِيَ الْأَمْرُ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ** .[1]

ترجمة : انتظار نه کوی دوی مګر دې ته چې راشي دوی ته (عذاب د) الله په سیورو (سورو) کې له وریځوځخه او (راشي دوی ته) پرښتې (د عذاب) او خلاص شی کار (د اهلاک د دوی) او (خاص) الله ته بېرته ګرځول کیږي ټول کارونه (په **قیامت** کې د مجازاتو دپاره) .

[1] سورة البقرة آیة ۲۱۰

# لمر به په خلقو را ټیټ شي

لمر به ګرم شي او په خلقو باندې به را ښکته شي تردې چې د لمر او د خلقو په مینځ کې به یو میل مسافه وي سوزول به کوي خو مړه کول به نه کوي په خلقو باندې به د هغوی د عملونو مطابق خولې راشي ځینې به داسې خلق وي چې تر ښنګریو پورې به په خولو کې وي او ځینې به داسې وي چې خولې به یې زنګنونو ته رسیږي او ځینې به داسې وي چې تر نو پورې به په خولو کې ډوب وي او ځینې به داسې وي چې تر زنه پورې به یې خولې ور رسیږي او ځینې به په خپلو خولو کې ډوب وي .

رسول الله ﷺ فرمایي : **تَدْنُو الشَّمْسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى قَدْرِ مِيلٍ ، وَيُزَادُ فِي حَرِّهَا كَذَا وَكَذَا ، يَغْلِي مِنْهَا الْهَوَامُّ ، كَمَا يَغْلِي الْقُدُورُ ، يَعْرَقُونَ فِيهَا عَلَى قَدْرِ خَطَايَاهُمْ ، مِنْهُمْ مَنْ يَبْلُغُ إِلَى كَعْبَيْهِ ، وَمِنْهُمْ مَنْ يَبْلُغُ إِلَى سَاقَيْهِ ، وَمِنْهُمْ مَنْ يَبْلُغُ إِلَى وَسَطِهِ ، وَمِنْهُمْ مَنْ يُلْجِمُهُ الْعَرَقُ .** [1]

ترجمة : لمر به د یو میل په اندازه باندې را ښکته شي او ګرمي به یې دومره دومره زیاته شي په ککرۍ کې به ماغزه د ګرمي نه جوش خوري لکه کټو چې جوش خوري د خپلو ګناهونو په اندازه به د خلقو څخه خوله وزي د چا به تر ښنګریو رسیږي ، د چا به در پنډیو پورې رسیږي او د چا به تري نیمایي بدن پورې رسیږي او ځینې به په خپلو خولو کې ډوب وي .

یو عالم فرمایي : زه چې په اوس وخت کې خلق په دنیا کې وینم چې په ګرمو ورځو کې د لمر نه د ځان ساتنې لپاره څومره اهتمام کوي او ددې فکر

---

[1] رواه الامام احمد

کوي چې د لمر ګرمي وربانديې ونه لګيږي او کله يې چې چېرته د تلو راده وي نو انتظار کوي چې د لمرګرمي لږ کمه شي بيا به لاړ شم زه ورته حيران يم چې دوی د هغه لمر غم ولې نه کوي چې پنځوس زره کاله به د دوی په سر ولاړ وي د هغه لمر غم په هغه ورځ هېڅ نشي کېدلی که د هغه لمر لپاره او د هغه لمر نه د ځان د خلاصولو لپاره هرڅوک څه کوي نو اوس يې وخت دی په دنيا کې بايد انسان داسې څه وکوي چې په **قيامت** کې يې په سر باندې سيوری راشي په هغه ورځ چې ټول خلق لوڅې پښې او لوڅ بدنونه د حساب لپاره ولاړ وي هېڅوک به له وېرې او هيبت نه بل چا ته نه ګوري هرڅوک به د خپل ځان په غم کې وي .

## د لمر ګرمي

د رياضياتو ماهرين علماء فرمايي : له زمکې څخه د لمر اوسطاً لرې والی ۹۳ ميليونه ميله وي چې د 149.6 ميليونه کيلو متره سره سمون خوري او د لمر په سطح باندې د لمر حرارت ۶۰۰۰ درجې وي او دا حرارت د لمر په مينځ کې ۱۶ مېليونه درجې وي او دا حرارت چې زمکې ته له لمر څخه را رسيږي دا خو د اصلي حرارت په نسبت دومره کمزوری دی چې بالکل ددې قابل نه دی چې انسان يې ورسره مقايسه کړي ځکه دا له ۹۳ ميليونه ميله لرې دلته را رسيږي نو زما ګران لوستونکی يې اوس مقايسه کولی شي او اندازه کولی شي چې د لمر هغه خپل حرارت به څنګه وي ؟ په اوس وخت کې چې خلق په اوړي کې د لمر ددې حرارت نه په تنګ دي او څومره اسباب تياروي چې په اوړي کې يې ګرمي ونشي نو په هغه ورځ چې لمر د ۹۳ ميليونو ميلونو په ځای يو ميل لرې وي او په هغه ځای کې هيڅ شی نه پيدا کيږي چې انسان وربانديې په ځان سيوری وکوي هلته به دا خلق څه کوي؟ او دلته چې لمر ډېر زيات شي نو څو ساعته

به شي په هغه ورځ چې دا لمر په دنیا باندې پنځوس زره کاله ولاړ وي هلت به څه کیږي؟

## د قیامت په ورځ سیوری

په دنیا کې مونږ مال مصرف کوو ترڅو د لمر له ګرمي نه ځان وساتو خو د قیامت په ورځ به د انسان په لاس کې هېڅ هم نه وي چې ځان ورباندې له لمر څخه وژغوري حتی چې په بدن باندې به جامې هم نه وي نو د هغه لمر نه د ځان ساتلو لپاره الله انسان ته عمر ورکړی دی انسان چې دلته صرف عمل وکوي نو په قیامت کې به یې الله د لمر څخه وساتي په احادیثو کې په خاصه توګه ځینې داسې عملونه راغلي دي چې په آخرت کې د بنده په سر سیوری جوړوي تر خپلې وسې مې تاسې ته را ټول کړي دي :

## د چا په غربت کې ورته صبر کول

کله چې په چا باندې څه حق وي او د هغه حق د ورکولو وخت پوره شوی وي خو د هغه لاس تنګ وي نو چې انسان هغه تنګ نه کړي او د هغه د لاس تر فراخي پورې ورته صبر وکوي، یا ورته په قرض او حق کې سپک والی وکوي څومره چې د هغه په وس پوره وي هغه ورڅخه واخلي او نور ورته وبښي الله به دده دا عمل ددې سبب کړي چې د قیامت په ورځ به دده په سر باندې سیوری وي حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **مَنْ أَنْظَرَ مُعْسِراً ، أَوْ وَضَعَ لَهُ عنه أَظَلَّهُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تَحْتَ ظِلِّ عَرْشِهِ ، يَوْمَ لاَ ظِلَّ إِلاَّ ظِلُّهُ .** [1]

[1] **رواه الترمذي**

ترجمة : چا چې وخت او مهلت ورکړو هغه چاته چې د هغه لاس تنګ وي او یا ورته تر خپل حق ور تېر شو الله به یې ده ته تر عرش لاندې د سیوري ځای ورکړي په هغه ورځ چې د الله د سیوري نه بغیر بل سیوری نه وي .

په یو بل حدیث کې رسول الله ﷺ فرمایي : **إن أول من يستظل في ظل الله يوم القيامة ، لرجل أنظر معسراً أو تصدق عنه .** [1]

ترجمة : د **قیامت** په ورځ چې تر هرچا مخکې ورته د الله په سیوري کې ځای ورکول کیږي هغه کس به وي چې داسې کس ته یې صبر کړی وي چې د هغه لاس تنګ وي او یا یې هغه ته خپل حق د صدقې په ډول ور پرېښی وي .

پدې اړه مې یو وخت یو حدیث لیدلی دی له خپل لوستونکي سره یې شریکوم حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **كَانَ رَجُلٌ يُدَايِنُ النَّاسَ ، فَكَانَ يَقُولُ لِفَتَاهُ : إِذَا أَتَيْتَ مُعْسِراً فَتَجَاوَزْ عَنْهُ ، لَعَلَّ اللَّهَ يَتَجَاوَزُ عَنَّا ، فَلَقِيَ اللَّهَ فَتَجَاوَزَ عَنْهُ .** [2]

ترجمة : یو سړی وو خلقو ته به یې قرضونه ورکول بیا به یې خپل خادم ته ویل کله چې داسې چا ته د قرض غوښتلو لپاره ورتلې چې د هغه لاس تنګ وو نو ترې ور تېرېږه کېدای شي ددې امله الله مونږ ته تر ګناهونو را تېر شي بیا دا کس له الله سره مخامخ شو الله تر ګناهونو ور تېر شو .

---

[1] رواه الطبراني
[2] رواه البخاري و مسلم

په يو بل حديث کې رسول الله ﷺ فرمايي : **من سره أن ينجيه الله من كرب يوم القيامة ، وأن يظله تحت عرشه ، فلينظر معسراً .** [1]

ترجمة : که د چا دا خوشيږي چې د **قيامت** د سختيو څخه يې الله خلاص کړي او دا چې د عرش تر سيوري لاندې ځای ورکړي نو چې پداسې چا يې حق وي چې د هغه لاس تنګ وي نو هغه ته د صبر وکوي .

## له مجاهدينو سره مرسته کول

د حضرت سهل بن حنيف څخه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **مَنْ أَعَانَ مُجَاهِدًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ، أَوْ غَارِماً فِي عُسْرَتِهِ ، أَوْ مُكَاتَباً فِي رَقَبَتِهِ ، أَظَلَّهُ اللَّهُ فِي ظِلِّهِ يَوْمَ لاَ ظِلَّ إِلاَّ ظِلُّهُ .** [2]

ترجمة : چا چې د الله په لاره کې له مجاهد سره مرسته وکوله او له غريب سره يې پداسې وخت کې مرسته وکوله چې د هغه لاس تنګ وي او يا يې د هغه غلام سره مرسته وکوله چې هغه ته خپل مالک ويلي وي چې دا معلوم مبلغ راوړه بيا ته ازاد يې نو الله به په خپل سيوري کې دې کس ته پداسې وخت کې ځای ورکړي چې د هغه د سيوري نه بغير به بل سيورى نه وي .

## د الله لپاره سره مينه کول

هغه څوک چې بل کس ورته نېک ښکاره شي يوازې د هغه د نيکي له امله د هغه سره مينه کوي او

[1] رواه مسلم
[2] رواه احمد و الحاكم

يوځوک ورته ددې امله ګران وي چې دا کس به الله ته ګران وي ، دده عملونه نېک دي او ددې لپاره ورسره مينه کوم چې الله رضا شي او پدې مينه کې يې بل هېڅ مقصد او هدف نه وي نو دې کسانو ته به هم الله د **قيامت** په ورځ د خپل عرش په سيوري کې ځای ورکړي حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :

**إِنَّ اللَّهَ يَقُولُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ : أَيْنَ الْمُتَحَابُّونَ بِجَلاَلِي ، الْيَوْمَ أُظِلُّهُمْ فِي ظِلِّي ، يَوْمَ لاَ ظِلَّ إِلاَّ ظِلِّي .** [1]

ترجمة : بېشکه الله به د **قيامت** په ورځ فرمايي هغه کسان چې زما په لويي يې يو له بل سره مينه کوله هغوی چېرته دي نن به زه هغوی ته په خپل سيوري کې ځای ورکوم پداسې ورځ چې زما د سيوري نه بغير بل سيوری نشته .

حضرت عبادة بن صامت فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **حَقَّتْ مَحَبَّتِي لِلْمُتَحَابِّينَ فِيَّ ، وَحَقَّتْ مَحَبَّتِي لِلْمُتَبَاذِلِينَ فِيَّ ، وَحَقَّتْ مَحَبَّتِي لِلْمُتَزَاوِرِينَ فِيَّ ، وَالْمُتَحَابُّونَ فِي اللَّهِ عَلَى مَنَابِرَ مِنْ نُورٍ ، فِي ظِلِّ الْعَرْشِ يَوْمَ لاَ ظِلَّ إِلاَّ ظِلُّهُ .** [2]

ترجمة : زما محبت حق شو د هغه کسانو لپاره چې زما د وجې يو له بل سره مينه کوي ، زما محبت ثابت شو د هغه چا لپاره چې زما لپاره يو د بل لپاره مصرف کوي ، زما محبت ثابت شو د هغه چا لپاره چې زما لپاره د يو بل ملاقات کوي او هغه کسان چې د الله لپاره له يو بل سره مينه کوي هغه به د نور په منبرونو باندې وي د عرش

---

[1] رواه مسلم و احمد
[2] رواه احمد و الطبراني

په سیوري کې په هغه ورځ چې د هغه د سیوري نه بغیر بل سیورى نه وي .

## سورة بقرة او سورة آل عمران یادول

قرآن کریم ټول برکت دی او هره برخه یې ویل د زیات ثواب لامل ګرځي او ټول قرآن کریم به انسان په آخرت کې له مشکلاتو څخه ساتي خو دا دوه مبارک سورتونه چې څوک یاد کړي رسول الله ﷺ فرمایي دا به د **قیامت** په ورځ راځي او خپل کسان به پیدا کوي او د هغوی ساتنه به کوي رسول الله ﷺ فرمایي : **اقْرَءُوا الْقُرْآنَ فَإِنَّهُ يَأْتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ شَفِيعاً لأَصْحَابِهِ ، اقْرَءُوا الزَّهْرَاوَيْنِ الْبَقَرَةَ وَسُورَةَ آلِ عِمْرَانَ ، فَإِنَّهُمَا تَأْتِيَانِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُمَا غَمَامَتَانِ ، أَوْ كَأَنَّهُمَا غَيَايَتَانِ ، أَوْ كَأَنَّهُمَا فِرْقَانِ مِنْ طَيْرٍ صَوَافَّ ، تُحَاجَّانِ عَنْ أَصْحَابِهِمَا ، اقْرَءُوا سُورَةَ الْبَقَرَةِ ، فَإِنَّ أَخْذَهَا بَرَكَةٌ ، وَتَرْكَهَا حَسْرَةٌ ، وَلاَ تَسْتَطِيعُهَا الْبَطَلَةُ** .[1]

ترجمة : قرآن کریم لولئ ځکه دا د **قیامت** په ورځ د خپلو کسانو لپاره شفاعت کوي دا دواړه ځلاند وایاست سورة بقرة او سورة آل عمران (دېته یې ځلاند وویل ځکه په دنیا او آخرت کې ددې دواړو نور زیات دی) ځکه دوی دواړه د **قیامت** په ورځ راځي لکه دوی دواړه چې وریځې وي (غمامة او غیایة) دواړه وریځو ته وایي او یا داسې لکه دا چې د مارغانو ټولګي وي چې وزرونه یې غوړولي وي د خپلو کسانو له لوري دلائل وايي (له خپلو کسانو څخه دفاع کوي) سورة بقرة لولئ ځکه د سورة بقرې اخیستل (زده کول او یادول) برکت دی ، پرېښودل یې د خفګان خبره ده او ددې سره د باطل وس نه رسیږي (ددې د مطلب

[1] رواه مسلم

په اړه ځيني علماء فرمايي چا چې په سِحر او جادو باندې دا وويل بيا به جادو اوسِحر تاثير نه کوي او يا يې دا معنی ده چې ځوک دا سورت له ټولو خپلو معنا ګانو سره زده کړي بيا به له هغه سره ځوک بحث نشي کولی او دی به په هر باطل باندې په بحث کې زورور کيږي) .

## غريبانو او فقيرانو ته خيرات ورکول

انسان ته په دنيا کې مال ډېر ګران شی دی د هغه خيرات کول او محتاجينو ته ورکول غوره عمل ګڼل شوی دی او دا د يو انسان د ښه ايمان نښه ده او ددې نښه ده چې دا کس په ايمان کې صادق او رښتونی دی او د ډېرو ثوابونو ځخه يې يو دادی چې په هرچا باندې به د **قيامت** په ورځ د هغه صدقه او خيرات سيوری کوي نو نېکبخت به وي هغه انسان چې تر خپل مرګ يې وړاندې ځه خيرات او صدقې کړې وي حضرت عقبة بن عامر فرمايي ما له رسول الله ﷺ ځخه واوريدل چې هغه فرمايل :

**كُلُّ امْرِئٍ فِي ظِلِّ صَدَقَتِهِ حَتَّى يُفْصَلَ بَيْنَ النَّاسِ .** [1]

ترجمة : هر انسان به د خپلې صدقې په سيوري کې وي تردې چې د خلقو په مينځ کې فيصله ختمه شي .

په يو بل حديث کې راغلي دي چې اوه کسان دي چې الله به ورته په خپل سيوري کې په هغه ورځ ځای ورکړي چې په کومه ورځ بل سيوری نه وي په هغوی کې يې يو هغه کس حساب کړی دی چې يوه صدقه

[1] رواه الامام احمد

پداسې پټه توګه ورکړي چې په ښي لاس يې ورکړي او چپ لاس پرې خبر نشي .

## د عدالت نه ډک امامت کول

هغه کس چې د مسلمانانو په سر باندې حاکم شي او هغه خپله دوره په عدل او انصاف باندې ښائسته کړي دا عمل هم الله ته ډېر ګران دى او ددې سبب کيږي چې د **قيامت** په ورځ انسان د لمر نه وساتي او تر دې حکم لاندې هر هغه کس شامليږي چې د مسلمانانو څه کار ورته وسپارل شي او دى په هغه کې عدالت او انصاف وکوي که هغه د ټول اسلامي ملک بادشاهي او که تر هغې ښکته کومه وظيفه وي پدې اړه حضرت عبد الله بن عمر يو حديث نقل کړى دى هغه فرمايي : **أَنَّ الْمُقْسِطِينَ عِنْدَ اللَّهِ عَلَى مَنَابِرَ منْ نُور عَنْ يَمِين الرَّحْمَن ، الَّذِينَ يَعْدِلُونَ فِي حُكْمهمْ وَأَهْلِيهِمْ وَمَا وُلُّوا .** [1]

ترجمة : هغه کسان چې انصاف او عدل کونکي وي هغه به د الله سره د نور په منبرونو باندې وي د الله په ښي طرف کې هغه چې عدالت کوي په خپل حکم کې او په خپل اهل کې او په هغه کارونو کې چې دوى ته سپارل شوي وي .

## په ځواني کې عبادت کول

د انسان په عمر کې ځواني هغه وخت وي چې نفسي خواهشات ډېر په جذباتو کې وي او دا د ټول ژوند لکه يو ډول سپرلى داسې وي پدې وخت کې که انسان هر شي ته مخامخ شي هغه کار په ښه توګه کولى شي ددې امله خو په کومه معاشره کې چې ځوان نسل خراب شي هغه معاشره بيا نوره خپله

[1] رواه مسلم

خرابيږي او د هغه جامعې اصلاح کول بيا ډير سخت وي او هغه ځوان چې الله ته مخ کړي او عبادت وکوي الله ته د ځواني عبادت ډير ګران دی ځکه پدې وخت کې د انسان نفس له انسان څخه نور شيان غواړي خو چې يوځوان هغه په عبادت کې مصروف کوي د ښې تقوی نښه ده او د الله نه د ويرې نښه ده حضرت ابو هريره يو حديث نقل کړی دی هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **سَبْعَةٌ يُظِلُّهُمُ الله في ظِلِّهِ يومَ لا ظِلَّ إلا ظِلُّهُ : إِمامٌ عادِلٌ ، وشابٌّ نَشَأَ في عِبادة الله تعالى، ورَجُلٌ قَلْبُه مُعَلَّقٌ بالمساجد، ورَجُلانِ تَحَابَّا في الله: اجْتَمَعَا عليه وتَفَرَّقَا عليه، ورجلٌ دَعَتْه امْرأةٌ ذاتُ مَنْصِبٍ وجَمَالٍ فقال: " إني أَخاف الله "، ورجلٌ تصدَّق بصَدَقَةٍ ، فأَخْفَاهَا حتَّى لا تَعْلَمَ شِمَالُه ما تُنْفِقُ يَمِينُه، ورجلٌ ذكر الله خالياً، فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ** .[1]

ترجمة : اوه کسان دي چې الله به ورته په خپل سيوري کې په هغه ورځ ځای ورکړي چې د هغه د سيوري نه بغير بل سيوری نه وي.

١. عادل امام

٢. هغه ځوان چې د الله په عبادت کې را لوی شوی وي .

٣. هغه سړی چې زړه يې تر جوماتونو پورې تړلی وي .

٤. هغه دوه سړي چې يو له بل سره د الله لپاره مينه کوي په همدې سره يوځای کيږي او په همدې سره بيليږي .

٥. هغه سړی چې د ښه منصب او ښائست خاونده ښځه يې خپل ځان ته ور وغواړي او دی ورته ووايي زه د الله نه ډاريږم.

---

[1] **متفق عليه**

٦. هغه کس چې پداسې پټه توګه صدقه ورکوي چې په ښي لاس يې ورکړي چپ لاس يې پرې خبر نشي .

٧. هغه کس چې په يوازې حالت کې د الله ذکر وکوي له سترګو يې اوښکې راشي .

## په تجارت کې رښتیا ویل

هغه کس چې تجارت کوي او په خپل تجارت کې یې یوازې د حلال او روا مال پیدا کول وي او د خپل تجارت د ښه کولو لپاره یا د کوم شي د خرڅولو او اخیستلو لپاره دروغ نه وایي دا عمل هم الله ته ډېر خوښ دی او دا هم ددې سبب کېدلی شي چې د **قیامت** په ورځ د خپل خاوند ساتنه وکوي امام بیهقي یو روایت کړی دی د حضرت قتادة له لارې هغه فرمایي سلمان فرمایل : **التاجر الصدوق مع السبعة في ظل عرش الله تعالى يوم القيامة .** [1]

ترجمة : هغه تاجر چې په خپل تجارت کې دروغ نه وایي هغه هم له هغه اوو کسانو سره دی چې الله ورته د عرش په سیوري کې د **قیامت** په ورځ ځای ورکوي .

## اعمالنامه

په حشرکې چې خلک د حساب لپاره را ټول شي نو هر چا ته به خپل د عملونو کتاب په لاس کې ورکړل شي چې په هغه کې به دده د عمر هره لویه او وړه واقعه او حادثه لیکلې وي او دا کتاب دده اعمالنامه ده پدې برخه کې به په اعمالنامه باندې خبرې وکوو چې دا څه شی وي ؟ د هر انسان لپاره یوه اعمالنامه وي که متعددې وي؟ دا اعمالنامه څوک لیکي؟ دا څنګه ساتل کیږي؟ دا بنده ته ولې ورکول کیږي؟ په څه ډول ورکول کیږي؟

خو پدې بحث کې له ننوتلو وړاندې به ستاسې په خدمت کې یو څو هغه آیتونه کېږدم چې پدې اړه

[1] الثمر المستطاب

خبرې کوي الله فرمايي : **إِنَّا نَحْنُ نُحْيِي الْمَوْتَى وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا وَآثَارَهُمْ وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ فِي إِمَامٍ مُبِينٍ (12)** .[1]

ترجمة : بيشکه مونږ هم دا مونږ به ژوندي کوو مړي (په **قيامت** کې) او ليکو مونږ هغه چې مخکې ليږلي دي دوی او (هغه) نښې (چی وروسته پاتې کيږي) له دوی او هر شی شمېرلي دي مونږ هغه په اصل ښکاره (لوح محفوظ کې) .

پورتنی آيت پدې اړه خبره کوي چې تر مرګ وروسته به بېرته ژوند وي او د کتاب خبره يې کوله چې پکې د بندګانو عملونه ثبتول کيږي او درج کيږي او په امام مبين سره تړېنه تعبير شوی وو او الله فرمايي چې پدې کې مونږ هغه څه درج کوو چې **مَا قَدَّمُوا** او بل **وَآثَارَهُمْ** علماء ددې په تفسير کې فرمايي : د **مَا قَدَّمُوا** نه مراد هغه عملونه دي چې انسان يې کوي او د **وَآثَارَهُمْ** نه مراد هغه شيان دي چې دی يې پريږدي او دده نه وروسته خلق په هغه عمل وکوي لکه صدقه جاريه او داسې نور شيان .

ځينې علمای فرمايي مراد د **مَا قَدَّمُوا** نه دادی چې مونږ د دوی هغه نيتونه ليکو چې تر عمل وړاندې وي او د **وَآثَارَهُمْ** نه مطلب دادی چې مونږ د دوی عملونه ليکو چې د نيت نه وروسته يې وکوي ځينې علماء فرمايي چې **مَا قَدَّمُوا** نه مراد دادی چې مونږ د بندګانو عملونه ليکو که ښه وي او که بد او د **وَآثَارَهُمْ** نه مراد دادی چې مونږ د دوی هغه قدمونه ليکو چې ددې کار په لور يې اخلي که ښه وي او که بد .

[1] **سورة يس**

په بل ځای کې الله فرمايي : وَوُضِعَ الْكِتَابُ فَتَرَى الْمُجْرِمِينَ مُشْفِقِينَ مِمَّا فِيهِ وَيَقُولُونَ يَا وَيْلَتَنَا مَالِ هَذَا الْكِتَابِ لَا يُغَادِرُ صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً إِلَّا أَحْصَاهَا وَوَجَدُوا مَا عَمِلُوا حَاضِرًا وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ أَحَدًا (49) . [1]

ترجمة : او كيښودلى به شي كتاب (اعمالنامې په لاسونو د خلقو) پس ګورې به ته ګناهګاران ويريدونكي له هغه نه چې پكې (ليكلى) دي (له ګناهونو) . او وائي به اى هلاكه زمونږ (راشه دغه دې وخت دى) څه حال دى د دې اعمالنامې (ځمونږ) چې نه پريږدى (ګناه) وړه او نه لويه (ګناه ځمومونږ) مګر چې حساب كړې ئې دي هغه (ټولې) ، او وبه مومي دوى هغه څيز چې كړي وي (په دنيا كې په خپل مخ كې) حاضر (ليكلي په اعمالنامه كې) ، او نه كوي ظلم رب ستا پر هېچا (چې كومه ګناه ئې نه وي كړې او وئې ليكي) .

په بل ځای کې الله فرمايي : أَمْ يَحْسَبُونَ أَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَاهُم بَلَى وَرُسُلُنَا لَدَيْهِمْ يَكْتُبُونَ (80). [2]

ترجمة : آيا ګمان كوونكي دي (كفار) چې بېشكه مونږ نه آورو پټې خبرې د دوى او پټې مشورې د دوى (نه ده داسې) بلكه آورو ئې او رسولان زمونږ (چې حفظه ملكې دي) له دوى سره دي چې ليكي (ټول اعمال د دوى) .

الله فرمايي : وَتَرَى كُلَّ أُمَّةٍ جَاثِيَةً كُلُّ أُمَّةٍ تُدْعَى إِلَى كِتَابِهَا الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (28) هَذَا كِتَابُنَا يَنطِقُ عَلَيْكُم بِالْحَقِّ إِنَّا كُنَّا نَسْتَنسِخُ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (29). [1]

---

[1] سورة الكهف
[2] سورة الزخرف

ترجمة : او وبه وینې ته (ای کتونکیه په **قیامت** کې) هر امت ناست پرځنګنونو خپلو (له خوفه او هیبته) هر یو امت به رابللی شي په طرف د کتاب اعمالنامې خپلې (نو وبه ویل شی دوی ته له جانبه د الله چې) نن ورځ به جزاء درکړه شي (تاسې ته د) هغو (اعمالو) چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې) دغه کتاب زمونږ دی خبرې کوي (او شاهدي وائي) پر (اعمالو د) تاسې باندې په حقه سره . بېکشه مونږ وو چې امر به مو کاوه په لیکلو سره د هر هغه څه چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې) .

الله فرمايي:

وَكُلَّ إِنسَانٍ أَلْزَمْنَاهُ طَآئِرَهُ فِي عُنُقِهِ وَنُخْرِجُ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كِتَابًا يَلْقَاهُ مَنشُورًا (13) اقْرَأْ كَتَابَكَ كَفَى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا (14) .[2]

ترجمة : او هر انسان لا زم کړی دی مونږ له ده سره عمل د ده په غاړه دده کې ، او راوبه باسو ده ته په ورځې د **قیامت** کې یو کتاب (لیکلی شوی) چې یو ځای به شی وبه وینې هغه غوړیدلی . (او وبه ویلی شی ده ته) ولوله (دا) کتاب د تا (عمل نامه خپله)، کافي (بس) دی هم دا ځان ستا نن ورځ پر تا باندې حساب کوونکی (د نیکیو او د بدیو) .

الله فرمايي:

وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ (52) وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُسْتَطَرٌ (53) .[3]

---

[1] سورة الجاثية
[2] سورة الاسراء
[3] سورة القمر

ترجمة : او هر هغه شی چې کړي دي هغوی (ليکلي شوي دي) په (پاڼو د اعمالنامې د دوی او په) لوح محفوظ کې . او هر وړو کی او لوی (عمل که خير وي که شر وي) ليکلی شوي دي (په لوح محفوظ کې) .

وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ كِتَابًا (29) . [1]

ترجمة : او هر څيز (له طاعته او معصيته) شميرلي دي مونږ هغه په ليکلو سره (په لوح محفوظ کې لپاره د جزاء) .

كَلَّا إِنَّ كِتَابَ الْفُجَّارِ لَفِي سِجِّينٍ (7) وَمَا أَدْرَاكَ مَا سِجِّينٌ (8) كِتَابٌ مَّرْقُومٌ (9) . [2]

ترجمة : داسې پکار نه ده (او نه دي کوي ډير اخيستل او لړ ورکول په تجارت او غفلت له **قيامت** نه) بېشکه ليکلی شوي اعمال د فاجرانو (کافرانو) خامخا په سجين کې دي . او څه شي پوه کړی ئې ته (ای محمده) چې څه دی سجين يو دفتر دی ليکلی شوی (د فجارو د اعمالو) .

كَلَّا إِنَّ كِتَابَ الْأَبْرَارِ لَفِي عِلِّيِّينَ (18) وَمَا أَدْرَاكَ مَا عِلِّيُّونَ (19) كِتَابٌ مَّرْقُومٌ (20) يَشْهَدُهُ الْمُقَرَّبُونَ (21) . [3]

ترجمة : بېشکه کتاب ليکلی اعمال د ابرارو نېکانو خامخا په عليين کې دی او څه شي پوه کړې ته (ای محمده) چې څه دی عليين ؟ يو دفتر دی ليکلی شوی (د اعمالو د ابرارو) . چې ګوري حاضريږی هغه ته مقربان (د الله ملائکې او نور بند ګان) .

---

[1] **سورة النباء**
[2] **سورة المطففين**
[3] **سورة المطففين**

إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيدٌ (17) مَا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ (18) . [1]

ترجمة : (او ياد كړه) كله چې اخلي دوه اخيستونكي پرښتې چې يوه له ښي طرف نه ناسته وي ليكلو د نيكي ته او بله له كيڼ طرف نه ناسته وي ليكلو د بدي ته نه وائي دغه بنده هېڅ خبره مګر خو وي له ده څخه دوه ساتونكي ، حاضر او تيار چې ژر ئې وليكي .

وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَافِظِينَ (10) كِرَامًا كَاتِبِينَ (11) يَعْلَمُونَ مَا تَفْعَلُونَ (12) . [2]

ترجمة : حال دا چې بېشكه په تاسې باندې خامخا ساتونكې ملائكې (د عمل ، مقررې دي) عزتمنې (په نزد دالله ) ليكونكې (د اعمالو د تاسې) پوهيږي (دغه ملائک) په هغه څه چې كوئ ئې تاسې .

فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ فَيَقُولُ هَاؤُمُ اقْرَؤُوا كِتَابِيهْ (19) إِنِّي ظَنَنتُ أَنِّي مُلَاقٍ حِسَابِيهْ (20) . [3]

ترجمة : نو هر هغه څوک چې ور كړ شي كتاب (اعمال نامه) د ده په ښي لاس د ده نو وبه وائي (له خوشالي داسې چې) راشئ (واخلئ) او ولولئ تاسې دا زما كتاب (اعمالنامه) . بېشكه ما يقين كاوه (په دنيا كې) چې بېشكه زه پيوست كېدونكى يم له حساب خپل سره .

وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِشِمَالِهِ فَيَقُولُ يَا لَيْتَنِي لَمْ أُوتَ كِتَابِيهْ (25) وَلَمْ أَدْرِ مَا حِسَابِيهْ (26) . [1]

---

[1] سورة ق آية
[2] سورة الانفطار
[3] سورة الحاقة

ترجمة : او هر هغه ځوک چې ور کړ شی کتاب (اعمالنامه) د ده په کیڼ لاس د ده نو وبه وائي (له غمه داسې چې) ای کاشکي نه وی راکړل شوې ماته دا کتاب (اعمالنامه) زما او نه وم پوه شوی زه چې څه دی حساب زما .

فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ (7) فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا (8) وَيَنقَلِبُ إِلَى أَهْلِهِ مَسْرُورًا (9) وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ وَرَاء ظَهْرِهِ (10) فَسَوْفَ يَدْعُو ثُبُورًا (11) [2]

ترجمة : پس هر هغه ځوک ورکړه شی کتاب اعمالنامه د ده په ښي لاس د ده کې نو ژر ده چې حساب به و کړ شي له ده سره حساب آسان . او وبه ګرځي اهل خپل ته (په جنت کې) خوشاله کړی شوی . او هر هغه ځوک چې ور کړ شی کتاب اعمالنامه د ده وروسته تر شا د ده (په کیڼ لاس ئی) . پس ژر به نارې کړي دی ای هلاکه ای هلاکه (زما راحاضر شه! دا دې وخت دی) .

فَأَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ مَا أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ (8) وَأَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ مَا أَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ (9) . [3]

ترجمة : پس یاران ملګري د ښي لاس څومره ښه دي یاران ملګري د ښي لاس . او یاران ملګري د کیڼ لاس څومره بد سپک دي یاران ملګری د کیڼ لاس .

وَأَصْحَابُ الْيَمِينِ مَا أَصْحَابُ الْيَمِينِ (27) فِي سِدْرٍ مَّخْضُودٍ (28) . [4]

[1] سورة الحاقة
[2] سورة الانشقاق
[3] سورة الواقعة
[4] سورة الواقعة

ترجمة : او ملګرى ياران د ښي لاس څومره ښه دي ملګرى ياران د ښي لاس په بيرو بى اغزيو کې به وى .

وَأَصْحَابُ الشِّمَالِ مَا أَصْحَابُ الشِّمَالِ (41) فِي سَمُومٍ وَحَمِيمٍ (42).[1]

ترجمة : او ملګرى ياران د کينې لاس څومره بد دي ملګرى ياران د کينې لاس په اور تاوده کې به وي او په سوځوونکيو اوبو کې به وى .

وَإِذَا الصُّحُفُ نُشِرَتْ (10) .[2]

ترجمة : او کله چې اعمال نامى وغوړولې خواره کړل شي .

د اعمالنامې ذکر الله کړى دى چې فرمايي **وَإِذَا الصُّحُفُ نُشِرَتْ** (يعني چې کله علمنامې را خپرې کړل شي) امام قرطبي ددې آية په تفسير کې فرمايي : **أي فتحت بعد أن كانت مطوية ، والمراد صحف الأعمال التي كَتبت الملائكة فيها ما فعل أهلها من خير وشرّ تطوى بالموت وتنشر في يوم القيامة ، فيقف كل إنسان على صحيفته فيعلم ما فيها فيقول : مَالِ هَذَا الْكِتَابِ لَا يُغَادِرُ صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً إِلَّا أَحْصَاهَا .**[3]

ترجمة : يعني وروسته ددې چې هغه تاو کړل شوې وي را خلاصې به کړل شي او مراد د صحيفو څخه هغه اعمالنامې دي چې ملائکو ليکلې وي او هغه چې هرڅه يې پکي ليکلي وي چې خلقو کړې وي که خير وي او که شر وي چې د بنده له مرګ سره

[1] سورة الواقعة
[2] سورة التكوير آية ٩
[3] تفسير قرطبي

پیچل کیږي او د **قیامت** په ورځ به بېرته را خپرول کیږي او هر انسان ته به د هغه اعمالنامه ورکول کیږي او په هغه کې چې هرڅه دي په هغه به خبریږي بیا به وایي پدې کتاب څه چل دی چې پدې کې خو هېڅ وړه او لویه خبره نه ده پاتې شوې هرشی یې را جمع کړي دي .

حضرت ام سلمة فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **یُحشر الناس یوم القیامة حفاة عراةً** (ترجمة : خلق به د **قیامت** په ورځ باندې لوڅې پښې او لوڅ ځانونه را ټولیږي) حضرت سلمة فرمایي ما ورته وویل: یا رسول اللهﷺ پدې ورځ به ښځې هم لوڅې وي؟ یعني سړي به ورته ګوري نه؟ رسول الله ﷺ راته وویل : **شُغِلَ الناس یا أم سلمة** (خلق به پدې ورځ باندې مشغول وي یعني له چا سره به دا موقع نه وي چې بل چا ته وګوري؟) ما ورته وویل یا رسول الله ﷺ دا خلق به څه شي مشغول کړي وي؟ رسول الله ﷺ راته وویل : **نشر الصحف فیها مثاقیل الذر ومثاقیل الخردل** (ترجمة : د اعمالنامو خپربدل چې په هغې کې مثقالونه مثقالونه خیر او شر درج شوي وي).

## کرام کاتبین

کرام کاتبین هغه فرښتې دي چې زمونږ نېک او بد عملونه لیکي او همدا لیکلي زمونږ د عملونو کتاب وي چې د **قیامت** په ورځ به مونږ ته په ښي او یا الله مه کړه په چپ لاس راکول کیږي الله ددې

ملائکو په اړه فرمايي : وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَافِظِينَ (10) كِرَامًا كَاتِبِينَ (11) يَعْلَمُونَ مَا تَفْعَلُونَ (12) . [1]

ترجمة : حال دا چې بېشکه په تاسې باندې خامخا ساتونکې ملائکې (د عمل ، مقرر دي) عزتمنې (په نزد الله ) ليکونکې (د اعمالو د تاسې) پوهيږي (دغه ملائک) په هغه څه چې کوئ ئې تاسې .

په بل ځای کې الله فرمايي : إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيدٌ (17) مَا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ (18) . [2]

ترجمة : (او ياد کړه) کله چې اخلي دوه اخېستونکې پرښتې چې يوه له ښي طرف نه ناسته وي ليکلو د نيکي ته او بله له کينې طرف نه ناسته وی ليکلو د بدي ته نه وائي دغه بنده هېڅ خبره مګر خو وي له ده څخه دوه ساتونکي ، حاضر او تيار چی ژر ئې وليکي .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :
يتعاقبون فيكم ملائكة بالليل وملائكة بالنهار، ويجتمعون في صلاة الفجر وصلاة العصر، ثم يعرج الذين باتوا فيكم، فيسألهم ربهم وهو أعلم بهم كيف تركتم عبادي؟ فيقولون: تركناهم وهم يصلون وأتيناهم وهم يصلون . [3]

ترجمة : لتاسې سره د شپې او ورځې بدلې بدلې ملائکې پاتې کيږي او دا دواړه د سحر او مازيګر په مانځه کې سره جمع کيږي بيا (په سحر کې) هغه فرښتې چې لتاسې سره يې شپه کړې ده پورته ځي الله ورڅخه پداسې حالت کې پوښتنه کوي چې

---

[1] سورة الانفطار آية ١٠-١٢
[2] سورة ق آية ١٧-١٨
[3] صحيح مسلم

هغه د بندګانو په حال ښه خبر وو زما بندګان مو څنګه پرېښودل؟ دوى به ورته وواىي مونږ پداسې حالت کې پرېښودل چې هغوى مونځونه کول او مونږ چې ورغلو هم هغه وخت هم دوى مونځونه کول .

الله فرمايي :

**لَهُ مُعَقِّبَاتٌ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ يَحْفَظُونَهُ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ .** [1]

ترجمة : دده لپاره داسې پرښتې دي چې يو په بله پسې راځي دده د مخې د لورې او د شا له لوري نه د هغه ساتنه کوي د الله په امر يې ساتنه کوي.

امام ابن کثير ددې آية په تفسير کې فرمايي ددې آيت معنى داده چې له بنده سره ملائک وي د شپې او د ورځې ځينې داسې فرښتې وي چې په شپه کې د انسان ساتنه کوي او ځينې يې داسې وي چې په ورځ کې د انسان ساتنه کوي له بدو حادثو نه لکه همداسې چې نورې فرښتې هم له انسان سره وي د هغه نېک او بد اعمال ليکي د ښي طرف فرښته نېک اود ګس (چپ) طرف فرښته بد اعمال ثبت کوي او ليکي او دوه نورې فرښتې وي چې انسان ساتي يوه يې هر وخت د شا په خوا کې وي او يوه يې په مخ کې وي او د بنده ساتنه کوي نو پدې توګه يو بنده ټوله ورځ د څلورو ملائکو په مينځ کې وي او د شپې د څلورو نورو په مينځ کې وي دوه ساتونکې او دوه ليکونکې . [2]

رسول الله ﷺ فرمايي :

---

[1] سورة الرعد آية ١١
[2] تفسير ابن کثير

قالت الملائكة: رب! ذاك عبدك يريد أن يعمل سيئة - وهو أبصر به- فقال:

ارقبوه، فإن عملها فاكتبوها له بمثلها، وإن تركها فاكتبوها له حسنة،

إنما تركها من جرَّاي.[1]

ترجمة : ملائكو ويل اې ربه ! ستا دا بنده غواړي ګناه وکوي پداسې حال کې دا خبره الله ته کوي چې هغه دا بنده ښه ويني نو الله ورته وايي دده څارنه وکوئ که چېرته يې دا عمل وکولو نو ځومره ګناه يې چې کړې ده همدومره ورته وليکئ او که چېرته يې دا ګناه ونه کوله نو يوه نيکي ورته وليکئ ځکه ده دا زما د وجې پرېښوده .

## د کرام کاتبين په اړه د علم فائده

پدې ملائکو باندې مونږ ټول مسلمانان ايمان لرو چې دا موجودې دي او دا په هماغه صفاتو باندې دي لکه رسول الله ﷺ چې مونږ ته بيان کړي دي او پدې کې هيڅ شک نشته او پدې باندې چې د چا ايمان وي او چې په سمه توګه يې دا عقيده په زړه کې ننوزي نو ددېنه څو فايدې په بنده کې راځي :

الف : هر وخت يې په ياد وي چې الله لما سره دی او کله چې کوم کار کوي نو انسان د ځان سره حساب وکوي چې اوس به فرښته زما دا عمل ليکي نو آيا دا زما په اعمالنامه کې ښه زياتوي او

[1] صحيح البخاري

که بد او آیا دا ښه خبره ده چې زما په اعمالنامه کې ولیکل شي او که بد الله فرمایي :

مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ . [1]

ترجمة : نه وائی دغه بنده هېڅ خبره مګر خو وي له ده څخه دوه ساتونکي ، حاضر او تیار چی ژر ئې ولیکي .

ب : انسان کله کله لدې فرښتو څخه شرمیږي او داسې کار نه کوي چې که په هغه کار کې یې څوک ووینې نو د شرم خبره وي اکثر چې خلق بد کار کوي نو داسې ځای ته لاړ شي چې هلته یې څوک نه وینې نو د چا چې پدې خبره ایمان ټینګ شي چې د الله فرښتې هر وخت زما ملګرې دي نو بیا به انسان ډیر کارونه د دوی د شرم له امله هم پریږدي .

ج : انسان به په نېکو عملونو کې زیات کوښښ کوي چې د انسان په زړه کې دا عقیده ټینګه شي چې دا زه هرڅه کوم فرښته هغه لیکي نو کوښښ به کوي چې د ښي طرف فرښته دده په اړه ډیر څه ولیکي .

د : دې ملائکو ته به ضرر نه رسوي حضرت جابر بن عبد الله فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **أكل من هذه البقلة، الثوم فلا يقربن مسجدنا، فإن الملائكة تتأذى مما يتأذى منه بنو آدم .** [2]

ترجمة : چا چې اوږه وخوړه هغه د زمونږ جومات ته نه راځي ځکه ملائک د هغه شي نه په تنګ کیږي

[1] سورة ق آیة ۱۸
[2] **صحيح البخاري**

له کوم شي نه چې انسانان په تنګ کیږي (د هغې د بد بوی نه انسان هم په تنګ کیږي او ملائک هم)

# اصحاب اليمين

د **قيامت** په ورځ به ځينې داسې خلق وي چې د نيكو عملونو لورى يې درونند وي هغوى ته به اعمالنامې په ښي لاسونو كې وركول كيږي دې ته اصحاب اليمين ويل كيږي او د دوى لپاره د خوشحالي خبر دى او دوى به كامياب خلق وي (الله د مونږ له همدې ډلې څخه وګرځوي) د دوى په اړه الله فرمايي : **وَأَصْحَابُ الْيَمِينِ مَا أَصْحَابُ الْيَمِينِ .** [1]

ترجمة : او ملګرى ياران د ښي لاس څومره ښه دي ملګري ياران د ښي لاس .

لكه مخكې چې تېر شول دا اصحاب اليمين به هغه كسان وي چې دوى ته به اعمالنامې په ښي لاسونو كې وركول كيږي د دوى په اړه الله په بل ځاى كې فرمايي :

**يَوْمَ نَدْعُو كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ فَمَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ فَأُولَٰئِكَ يَقْرَءُونَ كِتَابَهُمْ وَلا يُظْلَمُونَ فَتِيلاً .** [2]

ترجمة : او (ياد كړه) هغه ورځ چې وبه بولو (په نامه سره) هر امت سره د انبياء او مشرانو د دوى ، نو هر هغه چاته چې ور كړه شوه اعمالنامه د ده په ښي لاس د ده كې نو دغه (اصحاب اليمين) لولي به اعمالنامې خپلې (په ډيرې خوشالۍ سره) او ظلم به ونه كړى شي (پر دوى) په اندازه د يو نري تار (چې په منځ د زړى د خرما كې وى) .

د دوى لپاره به خوشحالي وي الله فرمايي :

---

[1] سورة الواقعة آية ٢٧
[2] سورة الاسراء آية ٧١

**فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ فَيَقُولُ هَاؤُمُ اقْرَءُوا كِتَابِيَهْ .** [1]

ترجمة : نو هر هغه څوک چې ور کړ شی کتاب عمل نامه د ده په ښي لاس د ده نو وبه وائي (له خوشالی داسې چې) راشئ (واخلئ) او ولولئ تاسې دا زما کتاب اعمالنامه .

هغه کسان چې په ښي لاس اعمالنامه ورکړل شي له هغوی سره به اسانه حساب کیږي الله فرمایي :

**فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ * فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا .** [2]

ترجمة : پس هر هغه څوک چې ور کړه شي کتاب عملنانه د ده په ښي لاس د ده کې نو ژر ده چې حساب به و کړ شي له ده سره حساب آسان .

هغه کسان چې په ښي لاس کې اعمالنامه ورکړل شي هغوی به خوشحال وي الله فرمایي : **وَيَنقَلِبُ إِلَىٰ أَهْلِهِ مَسْرُورًا .** [3]

ترجمة : او وبه ګرځي اهل خپل ته (په جنت کې) خوشحاله کړی شوي .

هغه کسان چې په ښي لاس کې اعمالنامې ورکړل شي هغه به په عیش او مزو کې وي الله فرمایي : **فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ .** [4]

ترجمة : نو هغه (شخص) دی په عیش ښه کې .

---

[1] سورة الحاقة آية ١٩
[2] سورة الانشقاق آية ٧-٨
[3] سورة الانشقاق آية ٩
[4] سورة الحاقة آية ٢١

هغه کسان چې په ښي لاس کې اعمالنامې ورکړل شي هغه به په جنتونو کې او لوړو مقامونو کې وي الله فرمايي : فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ * قُطُوفُهَا دَانِيَةٌ .[1]

ترجمة : (چې دى به پرى راضى وى) په جنت عالى لوى اوچت کې چې ميوې به ئې نژدې وي .

هغه کسان چې په ښي لاس کې اعمالنامې ورکړل شي هغوى ته به ويل کيږي چې اوس خورئ او څښئ په برکت د هغه عملونو چې تاسې مخکې کړي دي الله فرمايي : كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا أَسْلَفْتُمْ فِي الأَيَّامِ الخَالِيَةِ .[2]

ترجمة : (ورته وبه ويل شى) خورئ او څښئ په اشتهاء هضم سره په بدل د هغو عملونو خپلو چې مخکې ليږلى وو (تاسې اى مؤمنانو) په ورځو تيرو شويو د دنيا کې .

## اصحاب الشمال

اصحاب الشمال به هغه کسان وي (الله د مونږ د هغوى له حال نه وساتي) چې هغوى ته به اعمالنامې په چپ لاس کې ورکول کيږي او د هغوى حالت به خراب وي د هغوى به مخه د دوزخ لور ته وي او د **قيامت** په ورځ به يې ناکامي په برخه وي الله د هغوى په اړه فرمايي :

وَأَصْحَابُ الشِّمَالِ مَا أَصْحَابُ الشِّمَالِ .[3]

ترجمة : او ملګرى ياران د کيڼ لاس څومره بد دى ملګرى ياران د کيڼ لاس .

---

[1] **سورة الحاقة آية ٢٢-٢٣**
[2] **سورة الحاقة آية ٢٤**
[3] **سورة الواقعة آية ٤١**

دا هغه کسان دي چې په دنیا کې یې له حدونو تجاوز کړی دی او د الله لور ته د دعوت کونکي خبرې به یې نه منلې او دا به ورته ډېره لرې ښکاره کېده چې مونږ به له مرګه وروسته بېرته ژوندي کیږو او دا عقیده یې نه درلوده نو اوس ورته اعمالنامې په چپ لاس کې ورکول کیږي الله فرمایي : إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ مُتْرَفِينَ وَكَانُوا يُصِرُّونَ عَلَى الحِنثِ الْعَظِيمِ وَكَانُوا يَقُولُونَ أَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ .[1]

ترجمة : (دا عذابونه په سبب د دې وو چې) بېشکه دوی وو پخوا له دې څخه په دنیا کې ودان کړی شوي په نعمتونو کې خوشال او وو دوی چې دوام اصرار ضد به ئې کاوه پر ګناه لویه (کفر) باندې . او ؤ دوی چې ویل به ئې آیا کله چې مړه شو مونږ او شو خاورې او هډو کي آیا بېشکه مونږ به بیا خامخا راپورته کړی شو .

دا چې په **قیامت** کې ورته اعمالنامې په چپ لاس ورکول کیږي دا هغه کسان دي چې په لوی الله یې ایمان نه درلود او مسکین ته د خوراک ورکولو ته یې څوک نه هڅول الله فرمایي :

إِنَّهُ كَانَ لا يُؤْمِنُ بِاللهِ الْعَظِيمِ وَلا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ المِسْكِينِ .[2]

**ترجمة :** بېشکه دا وو چې په لوی الله به یې ایمان نه راوړو او مسکین ته په خوراک ورکولو یې هڅول نه کول .

چا ته چې په چپ لاس اعمالنامه ورکړل شي (الله د مونږ لدې حال نه وساتي) وایي به کاش ماته

[1] سورة الواقعة آية ٤٥-٤٧
[2] سورة الحاقة آية ٣٣-٣٤

اعمالنامه نه وای راکړل شوې کاش زه له خپل حساب څخه نه وای خبر کړل شوی الله فرمايي : وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِشِمَالِهِ فَيَقُولُ يَا لَيْتَنِي لَمْ أُوتَ كِتَابِيَهْ * وَلَمْ أَدْرِ مَا حِسَابِيَهْ . [1]

ترجمة : او هر هغه څوک چې ور کړ شی کتاب اعمالنامه د ده په کیڼ لاس د ده نو وبه وائی (له غمه داسې چې) ای کاشکي نه وی راکړل شوې ماته دا کتاب اعمالنامه زما او نه وم پوه شوی زه چې څه دی حساب زما .

چا ته چې اعمالنامه په چپ لاس کې ورکړل شي ددې خپل بد حالت له امله خواهش کوي چې کاش دی پدې ځای کې نه وی ولاړ الله فرمايي : يَا لَيْتَهَا كَانَتِ الْقَاضِيَةَ . [2]

ترجمة : ای کاشکي وی (ړومبنی مرګ څما په دنیا کې) خلاصوونکی (څما له دوهم حیات) .

چا ته چې اعمالنامه په چپ لاس کې ورکړل شي هغه به په افسوس سره وايي چې په دنیا کې ما څومره مال جمع کړو اوس هغه مال لما څخه هېڅ شی دفع نه کړل او هېڅ ډول مرسته يې راسره ونه کوله او هغه زما قدرت هم لما څخه لاړو چې په دنیا کې به زه وربانديې ډېر نازېدم الله فرمايي : مَا أَغْنَىٰ عَنِّي مَالِيَهْ * هَلَكَ عَنِّي سُلْطَانِيَهْ . [3]

ترجمة : هیڅ دفع ونه کړه له ما څخې مال زما برباد شو له ما څخې سلطنت حکومت زما .

---

[1] سورة الحاقة آية ٢٥-٢٦
[2] سورة الحاقة آية ٢٧
[3] سورة الحاقة آية ٢٨-٢٩

خو دا افسوس او ارمان به ده ته هېڅ فایده ونه کوي دده په اړه به فیصله وشي چې ویې نیسئ او جهنم ته یې بوزئ الله فرمایي : خُذُوهُ فَغُلُّوهُ * ثُمَّ الْجَحِيمَ صَلُّوهُ * ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ . [1]

ترجمة : ونیسئ دی ! پس په ځنځیر سره وتړئ دی ! بیا (اور د) د دوزخ ته وغورځوئ دی ! بیا په یوه ځنځیر کې چې ګزونه د هغه اویا ګزه وی پس ننه باسئ دی (په دوزخ کې) !.

پدې ورځ چې چاته اعمالنامه په چپ لاس کې ورکړل شي په هغه باندې به ګرمه هوا لګیږي او په دوی باندې به ګرمې اوبه اچول کیږي الله فرمایي : وَأَصْحَابُ الشِّمَالِ مَا أَصْحَابُ الشِّمَالِ * فِي سَمُومٍ وَحَمِيمٍ * وَظِلٍّ مِّن يَحْمُومٍ لاَّ بَارِدٍ وَلا كَرِيمٍ . [2]

ترجمة : او ملګرى یاران د کینڼ لاس څومره بد دي ملګري یاران د کینڼ لاس په اور تاوده کې به وي او په سوځوونکیو اوبو کې به وي او په سیوري کې به وي د لوګى ډیر تور چې نه به بیخي سوړ (یخ) وی او نه به د عزت راحت وی .

هغه کسان چې په چپ لاس د هغوی اعمالنامې ورکړل شي خوراک به یې ترخه ونه د زقوم وي او له همغې نه به خپلې ګیډې ډکوي او څښاک به یې ګرمې جوش اوبه وي الله فرمایي : ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ * لآكِلُونَ مِن شَجَرٍ مِّن زَقُّومٍ * فَمَالِئُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ * فَشَارِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيمِ * فَشَارِبُونَ شُرْبَ الْهِيمِ . [3]

---

[1] سورة الحاقة آية ٣٠-٣٢

[2] **سورة الواقعة آية ٤١-٤٤**

[3] **سورة الواقعة آية ٥١-٥٥**

ترجمة : بيا به بېشکه تاسې اى ګمراهانو دروغ ويونکيو خامخا خوړونکي به يئ (په دوزخ کې) له ونې د زقوم څخه پس ډک کوونکې به يئ له هغې (ونې) څخه د ګيډو خپلو لره . پس څښونکی به يئ تاسې په هغه (زقوم خوړلی شوی) باندی له اوبو سوځوونکيو څخه پس څښونکی به يئ (په شان) د څښلو د او ښانو ډيرو تږو .

# قيامت ته تياری کول

الله فرمايي وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللهِ ثُمَّ تُوَفَّى كُلُّ نَفْسٍ مَا كَسَبَتْ وَهُمْ لا يُظْلَمُونَ .[1]

ترجمة : او وډار شئ له هغې ورځې نه چې په هغې کې به تاسې الله ته رجوع کوئ بيا به هر نفس ته تول هغه څه پوره ورکړل شي چې هغه يې عمل کړی وي او له دوی سره به ظلم نه کيږي.

پدې آيت کې الله خلک لدې نه وډار کړل چې بغير له تياري نه د **قيامت** له ورځې سره مخامخ شي او په ښکاره سره يې ورته وويل چې له هغې ورځې وډار شئ چې تاسې به ټول پکې الله ته رجوع کوئ او داسې ونه شي چې هلته بيا تاسې د خپلو بدو عملونو له نتيجې سره مخامخ شئ هلته به بيا تاسې ډېر ارمان کوئ خو څه فايده به يې نه وي او د عمل وخت به تېر شوی وي نه به توبه څه فايده کوي، نه به الله ته راجع کېدل څه ځای نيسي، نه به ژړا د چا حال بدلوي ، نه به انکار څوک خلاصولی شي او نه به اعتراف په چا باندې سهولت او اساني راوستلی شي هره لويه او وړه ګناه به ستا مخې ته ليکلې پرته وي په خپلو سترګو به يې وينې او د هرې ګناه وخت به درته په ياد وي نو د داسې ورځې په ځان د اسانه کولو لپاره همدا يوه لاره ده چې اوس خپل عملونه سم کړو او په خپلو عملونو سره تر مرګ وړاندې ددې ورځې لپاره تياری وکوو وخت شته ، صحت شته ، سهولت شته ، د توبې دروازې خلاصې دي الله راضي کيږي .

---

[1] سورة البقرة آية ٢٨١

# ماخذونه

1. القرآن الكريم
2. البرهان في علوم القرآن
3. الإتقان في علوم القرآن
4. تفسير القرطبي
5. تفسير ابن كثير
6. تفسير الطبري
7. تفسير المنار
8. صحيح البخاري
9. صحيح مسلم
10. سنن الترمذي
11. سنن النسائي
12. سنن أبي داود
13. سنن ابن ماجه
14. سنن الدارمي
15. سنن الدارقطني
16. شرح النووي على مسلم
17. فتح الباري شرح صحيح البخاري
18. حاشية السندي على ابن ماجه
19. عون المعبود
20. تحفة الأحوذي
21. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح
22. السيرة النبوية (ابن هشام)
23. كتاب الشفا بتعريف حقوق المصطفى
24. زاد المعاد

25. البداية والنهاية
26. جامع العلوم والحكم
27. سير أعلام النبلاء
28. بداية المجتهد ونهاية المقتصد
29. بيان المختصر شرح مختصر ابن الحاجب
30. بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع
31. تحفة المحتاج في شرح المنهاج
32. جمع الوسائل في شرح الشمائل
33. رد المحتار على الدر المختار
34. حلية الأولياء وطبقات الأصفياء
35. فتح القدير
36. البحر الرائق شرح كنز الدقائق
37. الأشباه والنظائر على مذاهب أبي حنيفة النعمان
38. القواعد النورانية الفقهية
39. أنوار البروق في أنواع الفروق
40. مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين
41. الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي
42. موعظة المؤمنين من إحياء علوم الدين
43. القاموس المحيط
44. لسان العرب
45. النهاية في غريب الحديث والأثر
46. مختار الصحاح
47. الحاوي للفتاوي

1. د حضرت محمد د نبوت معجزې پښتو
2. ږنګه ځاله پښتو
3. آشیانه سوخته فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق انګلیسي
5. دین یې دام دی ددنیا په لار کې اېښی پښتو
6. فرار از کزار فارسي
7. له کزاره تېښته پښتو
8. زوړ دین نوی مسلمان پښتو
9. ډم ډمکو جي او لیکوال پښتو
10. ادیان پشت در فارسي
11. له دروازې تر شا دینونه پښتو
12. د انصاف او اعتدال لاره پښتو
13. کفري الفاظ پښتو
14. کل بچه فارسي
15. معلومات عمومي فارسي
16. د حج لارښود پښتو او انګلیسي

17. محمد رسول الله سیرت اخلاق او پېژندنه پښتو
18. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اول پښتو
19. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دوهم پښتو
20. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دریم پښتو
21. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه څلرم پښتو
22. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه پنځم پښتو
23. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه شپږم پښتو
24. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اوم پښتو
25. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه آتم پښتو
26. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه نهم پښتو
27. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه لسم پښتو
28. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه اول پښتو
29. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه دوهم پښتو
30. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه دریم پښتو
31. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه څلورم پښتو

32. د فقهي کتابونو له پانو څخه پنځم
پښتو
33. د علم حديث مطالعه پښتو
او انګليسي
34. د فقهي کتابونو له پانو څخه شپږم
پښتو
35. کلمه طيبة پښتو
36. الدعاء
پښتو
37. اللهم عربي، پښتو،
انګلسي
38. المسجد
پښتو
39. قرآني معلومات لمړی برخه
پښتو
40. سلام پښتو
41. د فقهي کتابونو له پانو څخه اومه برخه
پښتو
42. د وخت اهميت (لمړی برخه)
پښتو
43. د وخت اهميت (دوهمه برخه)
پښتو
44. د وخت اهميت (دريمه برخه)
پښتو
45. الحکمة ١ پښتو
46. الحکمة ٢ پښتو
47. الحکمة ٣ پښتو
48. الحکمة ٤ پښتو
49. حتمي سفر (مرګ)
پښتو

50. حتمي سفر (شهادت) پښتو
51. حتمي سفرل (قتل) پښتو
52. حتمي سفر (ځانکدن) پښتو
53. حتمي سفر (کفن ، غسل ، جنازه) پښتو
54. حتمي سفر (قبر) پښتو
55. حتمي سفر (د **قيامت** وړې نښې) پښتو
56. حتمي سفر (د **قيامت** لويې نښې) پښتو
57. حتمي سفر (**قيامت**) ستاسې په لاس کې